# الجهد الأثيث (پښتو)

ترجمه

# السعي الحثيث

(مصطلح الحديث)

از:

## مولانا مفتی ابو یوسف محمد ولی درویش رحمه الله

(المتوفی ۱۹۹۹ء ۱٤۲۰ھ)

جامعة العلوم الاسلامية

علامه محمد یوسف بنوری ټاؤن کراچی.

ابوزید

۲۱/۱۱/۱٤٤٤ھ

# الجهد الأثيث

في ترجمة

# السعي الحثيث

ابو يوسف محمد ولی درویش غفرلہ

بسم الله الرحمن الرحیم

# فهرس الموضوعات

| عنوان | صفحه | عنوان | صفحه |
|---|---|---|---|

بسم الله الرّحمٰن الرّحيم

## سریزه

الحمد لله رب العالمين والصلاة والسلام على سيد الأنبياء والمرسلين وعلى آله وأصحابه أجمعين وعلى من تبعهم بإحسان إلى يوم الدين ـ

أما بعد ـ له ډیر وخت نه مې دا خیال وو، چه د اصول حدیث په موضوع باندے په پښتو ژبه یو مختصر شان رساله او لیکلے شی، او د فن ضروری مباحث پکښې راجمع شی د د پاره د دے چه پښتانه رونړه ترے استفاده اوکړے شی، او د دے فن نه خبر شی، دا فن ډیر اهم فن دے، او له دینه بے خبره پاتے کیدل نه دی پکار، ځکه چه د صحیح حدیث او ضعیف حدیث پیژندګلو هله کیږی، چه طریقه ئے معلومه وی، او د غه طریقه په اصول حدیث کښې ښودلے کیږی ـ ځکه چه چاته دا طریقه معلومه نه وی، نو هغه د صحیح او ضعیف په مینځکښې فرق نشی کولے ـ او د صحیح په ځائے به د ضعیف حدیث نه دلیل نیسی ـ

د مولانا محمد انور بدخشانی صاحب په دے موضوع د "السعی الحثیث فی مصطلح الحدیث" په نوم رساله رم په نظر راغله، او د اختصار

او جامعیت په وجه م ډیره زړه ته پریوته - خیال م اوکړو، چه راشه هم د دے رسالے ترجمه اوکړه، د غه شان به د احاجت کنځدائے ته منظور وی پوره شی، رساله په فارسیٔ ژبه کښې وه. او ما په پښتو ژبه کړه-

کوشش م کړے، چه ژبه ئے آسانه وی، او هرڅوک پرے پوئے شی، او فائده ترے واخلی - د فن چه کوم اصطلاحی الفاظ دی. د هغې م مطلب واضح کړے دے، ځکه چه د اصطلاحی الفاظو ترجمه راته ډیره ګرانه شکاره شوه -

که په تعبیر کښې څه غلطی راغلی وی - او د چا نظر پرے پریوزی، نو مهربانی دِ اوکړی صحیح دِ ئے کړی - او یا دِ ماته د هغې خبر راکړی - څوک چه د دے رسالے نه فائده واخلی، هغوئ دِ ما په خپلو نیکو دعاګانو کښې نه هیروی - الله تعالیٰ دِ دا رساله د مسلمانانو دپاره فائده منده او ما دپاره توښه د آخرت او ګرځوی -

إنه على ما يشآء قدير، وبالاجابة جدير، وصلى الله على خير خلقه محمد وآله وصحبه أجمعين، وعلى من تبعهم باحسان إلى يوم الدين، آمين يارب العٰلمين

ابو یوسف محمد ولی درویش غفرله

الاستاذ بجامعة العلوم الاسلامية علامه بنوری

تاؤن کراتشی - ۳ جمادی الثانی ۱۴۱۵ھ بمطابق ۸ نومبر ۱۹۹۴ء

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# تمهيد ،

الحمد لله الذی له المجد والعلاء فی القدیم والحدیث ، والصلاة والسلام علی رسوله الذی علمنا القران والحدیث ، وعلی اله وصحبه ومن تبعهم من الفقهاء وعلماء الحدیث .

اما بعد - دا خبره هرچا ته معلومه ده ، چه نکه څنګه په پیغمبر علیه السلام باندے ایمان راوړل په الله پاك باندے د ایمان راوړلو نه روستو دی ـ لکه کلمه طیبه " لااله الا الله محمد الرسول الله " په دے خبره باندے دلالت کوی ـ هم دغه شان د قران کریم علم او پرهغه پوهیدل د حدیث د علم او په هغے د پوهیدو نه علاوه فرض دی ـ دا اوس ځمونږ کم نصیبی ده ، چه مونږ د دواړو نه لرے او بے خبره یُو ـ یو خو د غفلت په وجه سره او بل ځمونږ د ملیانو صاحبانو په دے باره کښی د دے دواړو نه په ښه شان نه خبریدل ـ او بل د دے دواړو د علم د پاره چه کومے بنیادی خبرے دی د هغے نه بے خبری ، او بیا د حدیثو د اصطلاحاتو نه خو بے خبری بالکل عامه ده ـ له دے وجے نه ما اوغوښتل ، چه یو څو بنیادی اصطلاحات په دے کتاب کښی ذکر کړم ، چه د حدیث شریف د طالبانو د پاره د دے اصطلاحاتو پیژندل او یادول آسان شی ـ او ځما د پاره د آخرت توښه اوګرځی ـ إن ذلك علی الله یسیر ـ

# تقدیم

د کله نه چه د اسلامي علومو تدوین او جمع کېدل شروع شویدي۔ د اصول حدیث فن هم مخ په وړاندې وُو، خو ځان له یو ازې مستقل علم نه وُو۔ کله چه په څلورمه صدۍ کښې اسلامي علوم د کمال درجې ته اورسیدل۔ او د هر علم اصطلاحات مقرر شول، نو قاضي ابو محمد الحسن بن عبدالرحمٰن بن خلاد د رامهرمزي رحمه الله چه په ۳۶۰ھ کښې وفات شویدے، په اصول حدیث باندې یو کتاب چه نوم ئې "المحدث الفاصل بین الراوي والواعي" اوليکلو، دا په دې فن کښې اولنی کتاب وو، چه مستقل په دې موضوع باندې اوليکلې شو۔ خو د ترتیب په اعتبار سره مکمل نه وُو۔ د دوئ نه روستو ابو عبدالله حاکم نیشاپوري رحمه الله چه په ۴۰۵ھ کښې ئې وفات موندلے دے، د "معرفة علوم الحدیث" په نوم سره کتاب اوليکلو۔ خو دا کتاب هم کمزورې وُو او صفا نه وُو۔ او نه ئې د دې فن سره متعلق ټول بحث راغستې وُو۔ د دوئ نه روستو ابو نعیم احمد بن عبدالله اصفهاني رح چه په ۴۳۰ھ کښې په حق رسیدلے دے، د حاکم په کتاب باندې یو "مستخرج" اوليکلو۔ خو دوئ هم ټول بحثونه رانه نغسته او د راتلونکو د پاره ئې ډیر بحثونه پریښودل۔ او کله چه د خطیب بغدادي ابو بکر احمد بن علي چه په ۴۶۳ھ کښې وفات شوے دے، دور راغلے، نو

دوئ د اصول حدیث په قانون باندے یو کتاب د "الکفایة" په نوم باندے اولیکلو- او بل کتاب ئے د حدیثو د روایت د آدابو په باره کښ "الجامع فی آداب الشیخ والسامع" اولیکلو- دغه شان نورے ئے څو کتابونه د حدیث د علم سره متعلق په مختلفو فنونو باندے اولیکل- تردے چه د خطیب نه روستو راتلونکی خلق ټول په دے باره کښ د خطیب محتاج شول- لکه حافظ ابوبکر بن نقطهؒ وائی " کل من انصف علم أن المحدثین بعد الخطیب عیال علی کتبه" یعنی که څوک په انصاف سره اوګوری نو محدثین به ورته د خطیبؒ د کتابونو محتاجه ښکاره شی- ددوئ نه روستو قاضی عیاض مالکیؒ چه په ۵۴۴هـ کښ وفات دے، د اصول حدیث په فن باندے د "الالماع فی ضبط الروایة والسماع" په نوم باندے کتاب اولیکلو- ددوئ نه روستو ابوحفص میانجیؒ چه په ۵۸۰هـ کښ وفات دے، میدان ته راغلے او د "مالایسع المحدث جهله" په نوم ئے په دے فن باندے کتاب اولیکلو- ددوئ نه روستو حافظ ابو عمر عثمان بن الصلاح الشهرزوریؒ چه په ۶۴۳هـ کښ وفات دے- او د دمشق په مدرسه اشرفیه چه په دارالحدیث سره مشهوره وه، درس ورکوو- د "علوم حدیث" په نوم باندے کتاب چه په مقدمه ابن صلاح سره مشهور دے، اولیکلو- حافظ ابن صلاحؒ د علم حدیث د فنونو سره متعلق ټول بحثونه د یر صفا مرتب کړه- او خواره واره بحثونه ئے د خطیب بغدادیؒ وغیره د کتابونو نه راټول کړل، د دے وجے نه د ټولو

محدثینو د ابن صلاح" کتاب ته خیال شو۔ امام نووی" دا کتاب مختصر کړو، او "تقریب" نوم ئے ورله کیښودو۔ بلقینی" هم دا کتاب مختصر کړو، او "محاسن الاصطلاح" نوم ئے ورله کیښودو۔ بعضے محدثینو دا کتاب نظم کړو، یعنی په شعرونو کښې ئے ذکر کړو، لکه حافظ عراقی" په "الفیه" نومے کتاب کښې دا کتاب په شعرونو کښې ذکر کړیدے۔ او بعضے محدثینو پرے مستدرک اولیکل۔ حافظ ابن حجر عسقلانی" چه په ۸۵۲ھ کښې وفات دے، هم دا کتاب مختصر کړو، او "نخبة الفکر" نوم ئے ورله کیښودو، بیائے پرے د "نزهة النظر" په نوم سره شرحه اولیکله۔ او محمد بن احمد بن حجر" (د مصنف ځوئے) او عبدالرؤف مناوی" او محمد صادق[له] سندی هم په شرح نخبه باندے شرحے لیکلے دی۔ په درس نظامی کښې هم دا کتاب شامل دے۔ او په بعضے مدرسو کښې ورسره "تقریب نووی" هم په درس کښې شامل دے۔

(ملخص من "أطیب المنح فی علم المصطلح" از ص۳ تا ص۵)

[له] دا شرحه د محمد صادق سندی د ځوئ مخدوم ابوالحسن الصغیر السندی ده۔ او د "بهجة النظر" په نوم سره په حیدرآباد سنده کښې د "شاه ولی الله اکیډمۍ" له اړخه چهاپ شویده۔ ۱۲۔ ابویوسف غفرله،

**سوال:-** په اصول حدیثو کښې مشهور کتابونه کوم کوم دی؟

**جواب:-** په اصول حدیثو کښې مشهور کتابونه دادی۔

(۱) "المحدث الفاصل بین الراوی والواعی" قاضی ابو محمد الحسن بن عبدالرحمن بن خلاد رامهرمزی المتوفی سنہ ۳۶۰ھ لیکلے۔

(۲) "معرفة علوم الحدیث" ابوعبدالله محمد بن عبدالله الحاکم النیشاپوری المتوفی سنہ ۳۶۰ھ لیکلے۔

(۳) "المستخرج علی معرفة علوم الحدیث" ابونعیم احمد بن عبدالله الأصبهانی المتوفی سنہ ۴۳۰ھ لیکلے۔

(۴) "الکفایة فی علوم الروایة" ابوبکر احمد بن علی بن ثابت الخطیب البغدادیؒ المتوفی سنہ ۴۶۳ھ لیکلے۔

(۵) "الجامع لأخلاق الراوی وآداب السامع" دا هم خطیب بغدادیؒ لیکلے۔ په دے کتاب کښې د حدیث د روایت کولو آداب ذکر دی، لکه د نوم نه ئے معلومیږی۔ دا کتاب په دے موضوع باندے بے مثاله کتاب دے۔ خطیب بغدادیؒ د علوم حدیث په هر فن باندے مستقل کتاب لری۔ حکه خو حافظ ابوبکر بن نقطهؒ وائی۔ "کل من أنصف علم أن المحدثین بعد الخطیب عیال علی کتبه"

(۶) "الإلماع إلی معرفة اصول الروایة وتقیید السماع" قاضی عیاض بن موسی یحصبیؒ المتوفی سنہ ۵۴۴ھ لیکلے۔

(۷) "ما لا یسع المحدث جهله" ابوحفص عمر بن عبد المجید المیانجی المتوفی سنہ ۵۸۰ھ لیکلے۔

(۸) "علوم الحديث" ابو عمرو عثمان بن عبد الرحمٰن الشهرزوري المتوفی ۶۴۳ھ چه په ابن الصلاح سره مشهور دے، ییکلے - د اکتاب د "مقدمه ابن صلاح" په نوم سره مشهور او د اصول حدیث په کتابونو کښی بهترین کتاب دے -

(۹) "التقريب والتيسير لمعرفة سنن البشير النذير" محی الدين يحيٰ بن شرف الدين النووی المتوفی ۶۷۶ھ ییکلے - داکتاب په اصل کښی د ابن صلاح د کتاب "علوم الحديث" اختصار دے - خو بعضے ځایونه ئے ډیرگران دی -

(۱۰) "تدريب الراوی فی شرح تقريب النواوی" جلال الدین بن عبد الرحمٰن بن أبی بکر السیوطی المتوفی ۹۱۱ھ ییکلے - دا د تقریب نووی شرحه ده، او د اصول حدیث اکثر بحثونه ئے راغستی دی -

(۱۱) "نظم الدرر فی علم الأثر" زین الدین عبد الرحیم بن الحسین العراقی المتوفی ۸۰۶ھ ییکلے - داکتاب د "الفیه عراقی" په نوم سره مشهور دے او د ابن صلاح" کتاب "علوم الحدیث" ئے نظم کړے -

(۱۲) "فتح المغيث فی شرح الفية الحديث" محمد بن عبد الرحمٰن السخاوی المتوفی ۹۰۲ھ ییکلے - دا د عراقی" د "الفیه" شرحه ده - او په ټولو شرحو کښی ډیره مکمله شرحه ده -

(۱۳) "نخبة الفكر فی مصطلح علم الأثر" حافظ ابن حجر عسقلانی المتوفی ۸۵۲ھ ییکلے - داکتاب سره د دے چه ډیر مختصر دے - بیا هم د اصول حدیث په کتابونو کښی ډیر فائده مند کتاب شمارلے کیږی -

(۱۴) "منظومة البيقونية" عمر بن محمد البيقوني المتوفی ۱۰۸۰ھ لیکلے - دا نظم په کتابونو کښې د ټولو نه زیات مختصر دے -

(۱۵) "قواعد التحدیث" محمد جمال الدین القاسمي المتوفی ۱۳۳۲ھ لیکلے -

دا سے نورو ډیرو علمانو په دے لړکښې ډیر ښه ښه کتابونه لیکلی، خو په دے مختصر کتاب کښې د هغه ټولو کتابونو یادول گران دی -

---

# دعلم المصطلح تعریف

**تپوس:** علم المصطلح څه ته وائی ؟

**جواب:** علم المصطلح د هغه اصولو او قواعدو پیژندلو ته وائی، چه د هغې په وجه سره د حدیث سند او متن او پیژندلے شی، چه دا قبول دے او دا قبول نه دے -

**تپوس:** د دے علم موضوع څه ده، یعنی په دیکښې د کومو څیزونو نه بحث کیږی - ؟

**جواب:** د دے علم موضوع د حدیث سند او متن دے، چه دا قبول دے او دا نه -

**تپوس:** د دے علم مقصد څه دے ؟

**جواب:** د دے علم غرض او مقصد دا دے، چه د صحیح او ضعیف حدیث په مینځکښې فرق اوشی د پاره د دے چه په صحیح حدیث عمل اوشی، او د ضعیف

حدیث نه خلق ګمان پیږ کړی۔

**تپوس:۔** متن څه ته وائی ؟

**جواب:۔** متن د حدیث هغه الفاظو ته وائی، کوم چه د سند دختمیدو نه روستو شروع کیږی۔

**تپوس:۔** سند څه ته وائی ؟

**جواب:۔** هغه راویان کوم چه حدیث بیانوی۔

**تپوس:۔** اسناد څه ته وائی ؟

**جواب:۔** داهم هغه راویانو ته وائی کوم چه د حدیث په سند کښی ذکر کړی۔ او کله دد ے راویانو یادو لو ته هم اسناد وائی۔

**تپوس:۔** مُسنِد (دنون په زیر سره) څه ته وائی ؟

**جواب:۔** مسنِد هغه چا ته و یٔیلے کیږی، څوک چه په سند سره حدیث ذکر کړی۔ په معنیٰ ئے پوهیږی او کنه۔

**تپوس:۔** د مسنَد (دنون په زور سره) څه مطلب د ے ؟

**جواب:۔** مسنَد په لغت کښی هغه شی ته وائی، چه سند ئے ذکر شوے وی۔ او چا ته ئے نسبت شوے وی۔ او د محدثینو په اصطلاح کښی په دوو معنو راځی۔ اوّل :۔ هغه کتاب ته و یٔیلے کیږی، چه دیو صحابی روایتونه وی یکښی۔

دوئم :۔ مرفوع متصل حدیث ته و یٔیلے کیږی، یعنی هغه حدیث چه په سند سره روایت شوے وی۔

تپوس :- محدث چاته وئیلے شی ؟

جواب :- محدث هغه چاته وئیلے کیږی - چه د علم حدیث په روایت کولو او د هغې په معنی غور وفکر کښې مشغول وی - او د اکثرو حدیثو او د هغې د راویانو نه واقف وی .

تپوس :- حافظ چاته وئیلے کیږی ؟

جواب :- د بعضې علماؤ په نیز د بانندے حافظ او محدث یو شے دے . او د بعضې په نیز د حافظ د محدث نه اوچت وی - او د حدیثو اکثر راویان پیژنی -

تپوس :- د محدثینو په نیز د باندے حاکم چاته وئیلے کیږی ؟

جواب :- د محدثینو په اصطلاح کښې حاکم هغه چاته وئیلے کیږی چه د ټولو حدیثو په متنونو او سندونو ئے احاطه وی یعنی یاد وی ورته -

(خلاصه تیسیر مصطلح الحدیث (ص/۱۶)

# اول باب

## د حدیث ، خبر ، اثر ، مرفوع ، موقوف او مقطوع په بیان کښې

تپوس :- حدیث څه ته وائی ؟

جواب :- حدیث په لغت کښې خبرو ته او هر نوی شی ته وائی - او د محدثینو په اصطلاح کښې هغه خبرو او کار او تقریر ته وائی ، د کوم نسبت چه پیغمبر علیه السلام ته شوے وی - بعضې ځاځا د صحابه کرامو او تابعینو

خبرو او کار او تقریر ته هم حدیث وائی - لیکن حدیث اولنی معنی زیاته مشهوره ده -

**تپوس:-** تاسو اووے چه حدیث خبرے کار او تقریر ته وائی - خبرے او کار داخو ظاهر دی، خو تقریر څه ته وائی ؟

**جواب:-** تقریر دیته وائی چه څوک د پیغمبر علیه السلام په مخکښ څه کار اوکړی - یا څه خبره اوکړی - او پیغمبر علیه السلام ته ئے پته اولګی او بیا ئے هم دغه کار یا دغه خبرے نه منع نه کړی او چپ پاتے شی - د دے مطلب دا شو چه دا کار جائز دے -

**تپوس:-** خبر څه ته وائی ؟

**جواب:-** خبر په لغت کښ خبر ورکولو ته وائی، او د محدثینو په اصطلا[7] کښ په دریو معنو کښ استعمالیږی -

اوّله معنی :- خبر او حدیث یو شے دے - یعنی دد واړو یوه معنی ده -

دوېمه معنی :- حدیث هغے ته وائی چه د پیغمبر علیه السلام نه ثابت وی - او او خبر هغه چه د پیغمبر علیه السلام نه علاوه د بل چانه ثابت وی -

درېمه معنی :- خبر عام دے، که د پیغمبر علیه السلام نه ثابت وی او که د بل چا نه - او حدیث خاص دے په پیغمبر علیه السلام پورے - یعنی چه صرف د هغوی نه ثابت وی -

**تپوس:-** اثر څه ته وائی ؟

**جواب :-** اثر په لغت کښې باقی پاتے شوی شی ته وائی - او د محدثینو په اصطلاح کښې په دے کښې دوه قوله دی -(۱) یو دا چه حدیث او اثر یو شے دے -(۲) دویم دا چه کوم کارونه یا خبرے چه د صحابه کرامو او تابعینو نه ثابت وی، هغے ته اثر وائی - او کوم چه د پیغمبر علیه السلام نه ثابت وی، هغے ته حدیث وائی -

**تپوس :-** حدیث قدسی کوم یو دے ؟

**جواب :-** قدسی په لغت کښې هغه شی ته وائی چه پاکے ته ئے نسبت شوے وی د حدیث قدسی مطلب دا دے چه هغه حدیث چه مقدس ذات یعنی الله تعالیٰ ته منسوب وی - او د محدثینو په اصطلاح کښې حدیث قدسی هغه دے کوم چه پیغمبر علیه السلام امت ته د بیانولو او رسولو په وخت کښې الله تعالیٰ ته منسوب کړے وی - او فرمائیلی وی چه "قال الله تعالیٰ" الله تعالیٰ فرمائیلی یا هغه روایت چه مونږ ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه رارسیدلے وی او په هغے کښې الله تعالیٰ ته د هغے نسبت شوے وی -

**د حدیث قدسی مثال :-** امام مسلم رح په خپل کتاب "صحیح مسلم" کښې د حضرت ابوذر رضی الله عنه په واسطه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی "فیما روی عن الله تبارک وتعالیٰ انه قال : یا عبادی انی حرمت الظلم علی نفسی وحرمته بینکم فلا تظالموا ........" -

**تپوس :-** حدیث مرفوع کوم یو دے ؟

**جواب:-** هره خبره یا هر کار یا تقریر چه پیغمبر علیه السلام ته رسی، او له معنوی نه ثابت وی، هغې ته حدیث مرفوع وائی- لکه چه وائی چه پیغمبر علیه السلام داخبره کړیده، یا دا کار ئې کړیدے، او دغه شان تقریر هم، او یا دا او وائی- چه فلانکے حدیث دعبدالله بن عباسؓ نه مرفوعاً ثابت دے- یا او وائی "رفعه ابن عباسؓ" یا داسے نور الفاظ دمثال په طور" رأیت رسول الله صلی الله علیه وسلم یفعل کذا، او سمعت منه کذا، او فعل عنده کذا"-

**تپوس:-** حدیث موقوف څه ته وائی ؟

**جواب:-** هر هغه حدیث کوم چه تر صحابه او رسی، او یا صرف د صحابه کرامو نه روایت شوے وی، هغې ته حدیث موقوف وائی، لکه ابن عباسؓ دا خبره او کړه، او دغه شان تقریر هم- یا دا او وائی، چه دا حدیث دابن عباسؓ نه موقوفاً ثابت دے، یا داچه ابن عباسؓ باندے موقوف دے، یا داسے نور مثالونه-

**تپوس:-** حدیث مقطوع څه ته وائی ؟

**جواب:-** هر هغه حدیث چه تابعینو ته او رسی، هغې ته حدیث مقطوع وائی-

**فائده:-** (۱) محدثین کله حدیث موقوف او مقطوع دواړو ته هم اثر وائی-

(۲) اوکله اثر د صحابه کرامو خبرو او کار او تقریر ته وائی ۔

(۳) اوکله اثر حدیث مرفوع او د صحابه کرامو آثارو ته وائی، لکه امام طحاوی دخپل کتاب نوم شرح معانی الآثار ایښودے دے۔ سره ددے چه په دیکښې هم مرفوع حدیث شته او هم د صحابه کرامو آثار دغه شان امام طبرانی دخپل یو کتاب نوم "تهذیب الآثار" ایښے دے سره ددے چه په دیکښې مرفوع آثار زیات دی ۔

تپوس :۔ د اثر او خبر په مینځکښې فرق څه دے ؟

جواب :۔ خبر مرفوع حدیث ته وائی، او اثر د صحابه کرامو د آثارو سره خاص دے ۔ بعضے علماء اثر عام گنړی ، لکه وړاندے تیر شو۔ خو اوله معنی مشهوره ده ، چه اثر د صحابه کرامو اقوالو، افعالو او تقریر ته ویلے شی۔

## حدیث مرفوع او د هغے قسمونه

تپوس :۔ حدیث مرفوع یا رفع حدیث په څو قسمه دے ؟

جواب :۔ په دوه قسمه دے (۱) رفع حقیقی (۲) رفع حکمی بیا هر یو په درے قسمه دے ۔

**د رفع حقیقی قسمونه** ① رفع حقیقی په قولی حدیث کښې دا دے چه راوی اووائی ، ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی چه دا ئے فرمائیل ۔ یا اووائی چه دا ئے حدیث ئے بیان کړو ، یا اووائی "قال

رسول الله صلی الله علیه وسلم ، یا عن رسول الله صلی الله علیه وسلم ۔

(۲) رفع حقیقی په فعلی حدیث کښ داسے چه روای اووائی " رأیت رسول الله صلی الله علیه وسلم فعل کذا " یا داسے اووائی " کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یفعل کذا "

(۳) رفع حقیقی په تقریری حدیث کښ داده ، چه راوی اووائی " ما فلانکے کار د پیغمبر علیه السلام په مخکښ اوکړو نو منع ئے نکړم ۔

**د رفع حکمی قسمونه** (۱) رفع حکمی په حدیث قولی کښ داسے ده ، چه یو صحابی یو کار داسے اوکړی چه په هغے کښ د اجتهاد ګنجائش اوځاے نه وی ۔

(۲) رفع حکمی په حدیث فعلی کښ داسے ده ، چه اجتهاد پکښ نه شی کیدے ، یعنی دهغه کار پیژندګلو د پیغمبر علیه السلام نه داورید لو بغیر ، یا د پیغمبر علیه السلام نه د لیدلو بغیر نه کیږی ۔ یا راوی وائی د پیغمبر علیه السلام په زمانه کښ به خلقو داسے کار کولو ۔ ځکه چه د ظاهره خبره ده چه پیغمبر علیه السلام ته به د دغه کار و نو پته وه ۔

(۳) رفع حکمی تقریری داده ، چه صحابی اووائی چه سنت داسے دی ، یا اووائی چه مونږ ته د دے کار حکم شویدے ، یا یو صحابی د یو کار کولو ته ګناه یا اطاعت اووائی ۔ لکه حضرت عمار رض وائی " چا چه شکی روژه اونیوله ، نو په یقین سره هغه د ابو القاسم صلی الله علیه وسلم نافرمانی اوکړه ۔ او دا ځکه چه د پیغمبر علیه السلام نه د اورید لو بغیر یو کار ته ګناه یا عبادت وئیل جائز نه دی ۔

# دویم باب

## د اتصال ، انقطاع ، ارسال او تدلیس په بیان کښې

**تپوس:** حدیث متصل کوم یو دے ؟

**جواب:** که د سند ټول راویان په مخه ذکر وی ، او یو راوی یکښې هم په مینځکښې پریښودے شوے نه وی - نو داسے قسم حدیث ته متصل وائی ، او دراوی نه غورزیدو ته اتصال وائی -

**تپوس:** حدیث منقطع کوم یو دے ؟

**جواب:** دکوم حدیث د سند نه چه یو یا دیو نه زیات راویان غورزیدلی وی او ذکر شوی نه وی هغے ته حدیث منقطع وائی - او دے غورزیدلو ته انقطاع وائی -

**تپوس:** حدیث معلق کوم یو دے ؟

**جواب:** که راوی د سند په اول کښې غورزیدلے وی ، یو وی او که دیو نه زیات - نو داسے حدیث ته معلق وائی او دے غورزیدلو ته تعلیق وائی -

**تپوس:** که د سند ټول راویان حذف شوی وی ، یعنی ذکر شوی نه وی ، او "قال رسول الله صلی الله علیه وسلم" او وائی ، نو دے قسم حدیث ته څه وائی ؟

**جواب:** داسے حدیث ته هم معلق وائی ، داسے حدیثونه د صحیح بخاری په تراجمو (ترجمة الباب) کښې ډیر دی ، لکه د بخاری تعلیقات مشهور دی -

**تپوس:-** د معلق حدیث حکم څه دے، یعنی قبول دے او که نه؟

**جواب:-** د معلق په حکم کښ تفصیل دے۔ که حدیث معلق په داسے کتاب کښ وی، چه د هغې مصنف د صحت خیال پنه ساتلے وی، لکه صحیح بخاری۔ نو بیا به کتل شی چه د جزم او معلوم صیغې سره ئے ذکر کوی۔ لکه "قال فلان" یا "ذکر فلان" نو دا رنګے معلق حدیث بالکل قبول دے۔ ځکه چه د جزم په صیغه سره ذکر کول د دغه حدیث په ثبوت یا ندے دلالت کوی۔ او یا به ئے راوی د تمریض او مجهول په صیغه سره ذکر کوی۔ لکه "قیل" "یقال" یا "ذکر" د داسے قسم معلق حدیث کښ د علماؤ کلام دے۔ لیکن که چرے په داسے کتاب کښ وی چه د هغې مصنف د صحت خیال ساتلے وی، نو د دینه معلومیږی چه د دے حدیث څه اصل شته۔ د دے وجے علمائو وئیلی۔ "تعلیقات البخاری صحیحة او مفصلة" یعنی د بخاری تعلیقات صحیح دی۔ او بعضے داسے دی چه په هغې کښ تفصیل دے۔ لیکن د بخاری د تعلیقا نو نه علاوه د نورو چا تعلیقات چه ترڅو ثابت نه وی، صحیح ورته نشی وئیلے۔

**تنبیه:-** د اتفصیل په هغه ځائے کښ دے۔ چه تعلیق ئے خپل شیخ (استاذ) ته نه وی نسبت کړے، او که چرے خپل شیخ ته ئے نسبت کړے وی۔ او د هغه استاذ نه ئے سماع (اوریدل) هم ثابت وی۔ او د "قال" یا د دے پشانے په صیغه سره ئے ذکر کړے وی۔ نو داسے حدیث ته حدیث معنعن وائی۔ د دے حکم مخکښ راروان دے۔

**تپوس:- حدیث مرسل کوم یو دے ؟**

**جواب:-** حدیث مرسل هغه حدیث دے۔ چه د سند د اخیرنه تابعی نه روستو راوی غورزیدلے وی۔ راوی که صحابی وی او که تابعی، د دے غورزیدلو ته ارسال وائی، لکه تابعی او وائی "قال رسول الله صلی الله علیه وسلم کذا" اگرچه بعضے محدثین مرسل او منقطع یو شے گنړی۔ خو د نقهاء او محدثینو په نیزد مشهوره داده، چه د دواړو په مینځکښ فرق دے، هان! مرسل ته دلغت په اعتبار سره منقطع ویلے کیدیشی۔

**تپوس:- د مرسل حکم څه دے ؟**

**جواب:- د مرسل په حکم کښ څلور قوله دی۔**

(۱) د جمهورو محدثینو په نیزد پکښ توقف پکار دے، ځکه چه کیدےشی، چه ساقط راوی تابعی وی او یو تابعی د بل تابعی نه روایت کوی۔ کله خو داسے هم وی چه په یو سند کښ ترینځو شپږو تابعینو پورے وی۔ او په تابعینو کښ ضعیف، غیرضعیف، عادل او غیرعادل دواړه وی۔ د دے وجے د مرسل په حکم کښ توقف پکار دے۔

(۲) د امام ابوحنیفه او امام مالک په نیزد مطلقاً قبول دے۔ او د دے دواړو اماما نو دیل دادے، چه مرسِل (ارسال کونکو والا) د ډیر اعتماد او وثوق په وجه سره ارسال کوی۔ او اختلاف د ثقه په ارسال کښ دے۔ بکرے د مرسِل (ارسال کوونکی) په نیزد حدیث صحیح نه وے، نو چرے

په ـ هم "قال رسول الله صلی الله علیه وسلم" نه وـ ویلے۔

(۳) دامام شافعی په نزد هغه مرسل قبول دے۔ چه دبل طرفه ئے تائید ثابت وی۔ اګر که دغه مؤید پخپله هم مرسل وی۔

(۴) د امام احمد بن حنبلؒ نه د مرسل په باره کښې دوه قوله دی۔ یو داچه مقبول دے۔ او دویم داچه توقف پکښې پکار دے۔ دا اختلاف په هغه صورت کښې دے، چه راوی د ثقه راوی نه ارسال کوی۔ او که د ثقه او غیر ثقه دواړو نه ارسال کوی۔ نو بیا پکښې په اتفاق سره توقف دے۔

**تپوس:۔** معضل څه ته وائی ؟

**جواب:۔** که د سند د مینځ نه دوه راویان یوځائے پرله پسے ساقط شی۔ نو دے حدیث ته معضل وائی، او دے سقوط ته اعضال وائی۔

**تپوس:۔** که د سند د مینځ نه یو یا درے راویان ساقط شی کو هغے ته څه وائی؟

**جواب:۔** دے ته منقطع وائی۔ او دا انقطاع په خاص معنی سره ده۔ او د غیر متصل یو قسم دے۔ او منقطع په عامه معنی سره مقسم (هغه چه اقسام لری) دے۔ لکه وړاندے تیر شو۔

**تپوس:۔** د انقطاع نښه څه ده ؟

**جواب:۔** د انقطاع نښه اکثر درے څیزونه وی۔

(۱) راوی چه د چا نه روایت کوی، د هغه سره ئے ملاقات او لیده کاته ثابت نه وی۔

(۲) د دواړو زمانه یوه نه وي -

(۳) چه د چانه روایت کوي، د هغه له طرفه ورته اجازت نه وي -

دد ے درے واړو شیو پته د تاریخ نه لګي - ځکه چه په تاریخ کښې د راویانو

د پیدا کیدو او وفات کیدو او د هغوئ د طالب علمئ او د علم د پاره د هغوئ

د سفرونو حالات لیکلي وي - د اانقطاع هر عالم پیژني، خو یوه بله انقطاع

ده چه هغه ډیره پټه وي - او محدثین هغې ته تدلیس وائي -

پټوس :- تدلیس څه ته وائي ؟

جواب :- تدلیس په لغت کښې دیته وائي، چه خرڅونکے د څه شي د خرڅولو

په وخت کښې په هغه شي کښې موجود عیب پټ کړي، او اغستونکي ته ئے

څرګند نه کړي - دغه شان د سخت تیارے په معنی کښې هم راځي - د تیارے په

وجه په انسان باند ے د څیزونو په باره کښې اشتباه راځي - او د محدثینو

په اصطلاح کښې تدلیس دیته وائي، چه راوي خپل استاذ پریږدي -

د هغه نوم وانخلي او د هغه نه د پورته راوي نوم واخلي، او داسے الفاظ

ذکر کړي، چه په هغې کښې دد ے ذکر شوي راوي نه د اوریدو او نه اوریدو

دواړو احتمال وي لکه او روائي "عن فلان" یا "قال فلان" دا الفاظ

د هغه چا په باره کښې استعمالیږي، چه د راوي ورسره ملاقات شوے وي -

یا د هغه زمانے وي - دغه شان د هغه شیخ (استاذ) په باره کښې استعمالیږي -

چه دد ے راوي سماع (اوریدل د حدیث) د هغه نه ثابته وي - خو دا حدیث

ئے ترے نه وي اوریدلی -

پتوس:۔ حدیث مدلّس ځنګه پیژندہ شي ؟

جواب:۔ ددے تعلق ددے فن دماهرینو سره دے (دادهرچا کار نه دے)

پتوس:۔ د تدلیس حکم څه دے ؟

جواب:۔ د عامو علماؤ په نیزد ډیر بدکار دے، هاں! که د ثقه نه روایت کوي، نو قبول دے۔

پتوس:۔ تدلیس ولے کیږي ؟

جواب:۔ که راوي ثقه وي۔ نو د تدلیس سبب د هغه حدیث صحیح کیدل یا هغه مشهورتیا وي۔ او د غیرثقه د تدلیس د دغه استاذ نه د سماع پټول وي، د ډیر بوډا والی په وجه سره۔ اوکله په دے وجه سره وي۔ چه دغه شیخ د حدیث په فن کښ مشهور نه وي، اوکله شیخ مستور الحال وي، او مستور الحال کیدل د اعتراض سبب دے۔

پتوس:۔ معنعن څه ته وائي ؟

جواب:۔ معنعن هغه حدیث ته وائي، کوم چه په لفظ "فلان عن فلان" سره روایت شوے وي۔

پتوس:۔ معنعن ته به متصل وئیلے کیږي یا غیر متصل ؟

جواب:۔ که د معنعن حدیث راوي مدلّس وي، نو حدیث د منقطع په حکم کښ دے۔ اوکه راوي مدلس نه وي، نو د بعضے محققینو په نیزد علي بن المدینيؒ او امام مسلمؒ په مینځکښ او د عامو محدثینو په نیزد دامام بخاريؒ

او امام مسلم رح په مینځکښې دا دے رنګ حدیث په حکم کښې اختلاف دے. امام مسلم رح وائي، چه راوی دجامه په عنعنه سره روایت کوی، نو بیاچرے دخپل استاذ د زمانے وی، نو دا حدیث متصل په حکم کښې دے، اګرکه د دغه استاذ سره ئے ملاقات ثابت نه وی، او ابن المدینی رح او امام بخاری رح وائي - چه صرف دیوے زمانے کیدل کافی نه دی، بلکه دملاقات ثابتیدل هم ضروری دی.

دا خبره پیژندل پکاردی، چه د معنعن حدیث مرتبه دهغه حدیث نه کمه ده، کوم چه په سماع او تحدیث (حدثنا) سره روایت شوے وی. ددے وجے نه امام بخاری رح چه کوم ځائے معنعن حدیث ذکر کړے، وروسته ئے دا سے حدیث روایت کړے، چه په سماع او تحدیث سره روایت شوے وی، دا کمے ئے پوره کړے.

## دریم باب

### دحدیث مسند، شاذ، محفوظ او منکر په بیان کښے

**تپوس:-** حدیث مسند څه ته وائي ؟

**جواب:-** د محدثینو په نیز د مشهوره اصطلاح داده، چه هر مرفوع متصل حدیث ته مسند وائي. بعضے محدثین مطلقا متصل ته مسند وائي، اګرکه مرفوع وی یا موقوف او یا منقطع، او بعضے مطلقا مرفوع ته

مسند وائی، اګر که متصل یا منقطع وی. لیکن معتبره دغه مشهوره اصطلاح ده.

**تپوس:-** شاذ حدیث څه ته وائی ؟

**جواب:-** شاذ په لغت کښې هغه کس ته وائی چه د ډلے نه اوځی. او د محدثینو په اصطلاح کښې شاذ هغه حدیث ته وائی، چه یو ثقه راوی له ځان نه د زیات ثقه (اوثق) راوی خلاف روایت اوکړی.

**تپوس:-** د شاذ حدیث حکم څه دے ؟

**جواب:-** که د شاذ حدیث راوی ثقه نه وی نو هغه حدیث مردود او ناقابل قبول دے. او که چرے راوی ئے ثقه وی، نو د راوی د زیات حفظ (أحفظ) او د راویانو د زیاتوالی او دا سے د نورو وجوهاتو په وجه سره دا سے حدیث معتبر وی. خلاصه دا چه که د شاذ حدیث راوی د حدیثونو په یادولو او ضبط کولو کښې د نورو ثقه راویانو نه زیات وی او قوی وی، یا د شاذ حدیث راویان ګنړ وی، نو دا سے حدیث ته محفوظ وائی، او قابل د عمل وی یعنی که ضعیف د ثقه نه اختلاف اوکړی، او ثقه د اوثق نه، نو دیته شاذ وائی.

**تپوس:-** حدیث محفوظ څه ته وائی ؟

**جواب:-** لکه مخکښې تیر شو، چه که ثقه د اوثق مخالفت اوکړی، نو د ثقه روایت ته شاذ او د اوثق روایت ته محفوظ وائی.

**تپوس:-** منکر حدیث څه ته وائی ؟

**جواب:-** منکر حدیث په لغت کښې هغه شی ته وائی، چه د هغے انکار

(یعنی رد پرے) شوے وی - او د محدثینو په اصطلاح کښ هغه حدیث ته وائی- چه زیات ضعیف (اضعف) راوی د (کم) ضعیف راوی نه مخالفت اوکړی - د منکر حدیث په مقابله کښ معروف حدیث دے - معروف هغه حدیث ته وائی، چه (کم) ضعیف د زیات ضعیف (اضعف) راوی نه مخالفت اوکړی، او یا ثقه راوی د ضعیف راوی نه اختلاف اوکړی - معروف حدیث راجح او معتبر دے - او منکر حدیث مرجوح او غیر معتبر دے، د معروف حدیث راوی قوی وی، او د محفوظ حدیث د راوی نه اقوی (زیات قوی) وی-

**تپوس:-** متابع څه ته وائی ؟

**جواب:-** چه د کوم حدیث راوی معتبر وی- او د غه شان روایت یو بل معتبر راوی اوکړی، نو دویم روایت ته متابِع (د "با" په زیر سره) او اول ته متابَع (د "با" په زور سره) وائی- دا خبره پیژندل ضروری دی چه د متابِع د متابَع سره په قوت کښ یو ابر کیدل او یو شان کیدل ضروری نه دی- بلکه که متابِع په مرتبه او قوت کښ برابر نه وی، بیا هم د تقویت سبب ګرځی- محدثین چه کله وائی "تابعه فلان" وله متابع" نو د دوی مقصد هم د غه تقویت وی-

**تپوس:-** متابعت په څو قسمه دے ؟

**جواب:-** متابعت په دوه قسمه دے- (۱) یو په راوی کښ (۲) دویم د هغه په پورته شیخ (استاذ) کښ دے - اول قسم د دویم قسم په

نسبت زیات مکمل او غوره دے ، ځکه چه کمزوري او ضعیف اکثر د سند په اوّل کښې وي ـ او هغه د متابعت په وجه سره ختمیږي ـ

**تپوس:ـ** په بعضے ځایونو کښې متابع د " مثله " په لفظ سره ذکر کوي ـ او په بعضے ځایونو کښې د "نحوه" په لفظ سره ، نو د دواړو په مینځ کښې څه فرق شته او که نه ؟

**جواب:ـ** که متابِع د متابَع سره په لفظ او معنی دواړو کښې یو شان وي ، نو د محدثینو په عرف او اصطلاح کښې د دے دپاره لفظ " مثله " استعمالیږي او که صَرف په معنی کښې ورسره یو شان وي ، نو بیا ئے په " نحوه " سره ذکر کوي ـ په متابع کښې شرط داد ے ، چه د متابع راوی هم هغه راوي وي ، له چا نه چه اصل (متابَع) روایت کړے شوے وي ـ او که دا سے نه وي نو بیا ورته متابع نه ویلے کیږي ـ

**تپوس:ـ** د محدثینو په اصطلاح کښې شاهد څه ته وائي ؟

**جواب:ـ** شاهد په لغت کښې گواه ته وائي ـ او د محدثینو په اصطلاح کښې شاهد هغه حدیث ته وائي ، چه هغه د اصل روایت په شانے وي ـ خو د بل صحابي نه ـ که په لفظ او معنی کښې ورسره یو شانے وي ـ او که صرف په معنی کښې ورسره یو شانے وي ـ دواړه یو شے دے ـ د محدثینو دا کلام " له شواهد " " و یشهد به فلان " هم د غه مطلب دے ، بعضے محدثین په الفاظو کښې یو شان والي ته متابع وائي ـ او په معنی کښې یو شان والي ته شاهد وائي ـ که دیو صحابي نه وي او که د دوو نه ـ او کله یو (مثلاً متابع

د بل (شاهد) په ځائے استعمالوی.

**تپوس:-** اعتبار څه ته وائی؟

**جواب:-** اعتبار په لغت کښې د یوے غاړے نه بلے غاړے ته پورے وتو ته وائی.-او د محدثینو په اصطلاح کښې د متابع او شاهد د معلوملو د پاره د حدیثو تمام طرق او سندونو لټولو ته وائی.

**تپوس:-** معلل څه ته وائی؟

**جواب:-** معلل په لغت کښې علت والا او ناجوړه ته وائی.-او د محدثینو په اصطلاح کښې هغه حدیث ته وائی، چه د هغے په سند کښې څه علت او کمزوری وی.

**تپوس:-** علت د محدثینو په اصطلاح کښې څه معنی لری؟

**جواب:-** علت د محدثینو په اصطلاح کښې هغه پټ او مشکل شے دے.- چه هغه د حدیث په صحت کښې رکاوټ وی، اګر که په ظاهره د هغه حدیث سند صحیح او پوره وی.-خو دا قسم علتونه هغه خلق پیژندے شی چه د حدیث او د سند په باره کښې پوره مهارت او تجربه لری.- د دے علت مثال لکه مرسل حدیث موصول ذکر کړی.- او موقوف مرفوع ذکر کړی. دا سے نور هم علتونه شته چه هغه سیوا د حدیث د فن د ماهر کس نه بل څوک نه شی پیژندے، کله د علت نه دروغ، غفلت، بیکاره او خرابه حافظه او د دے پشان نور څیزونه هم مراد اخلی.-

# څلورم باب

## په راوي باندے د اعتراض په بيان کښې

تپوس :- د طعن ( اعتراض) وجے څو دي ؟

جواب :- دوه دي، (۱) يو د راوي د عدالت سره تعلق لري -

(۲) دويمه د راوي د ضبط (ياد ولو) سره تعلق لري -

تپوس :- د راوي د عدالت څه مطلب دے ؟

جواب :- عدالت هغه ملکه (قوت او استعداد) ده - کومه چه راوي په

تقوي او مروت باندے آماده کوي -

تپوس :- دلته کومه تقوي مراد ده ؟

جواب :- دلته د تقوي نه مراد له بدو کارونو نه شرك، فسق

او بدعت نه ځان ساتل دي - د صغيره (وړوکي) ګناه په باره کښې اختلاف

دے، خو صحيح دا ده، چه د صغيره نه هم بچ کيدل شرط او ضروري دي -

تپوس :- د مروت څه معنی ده ؟

جواب :- کوم کارونه چه د سړيتوب نه خلاف وي - د هغې نه ځان

بچ ساتلو ته مروت وائي - لکه بعضے مباح کارونه شو، لکه په بازار کښې

خوراك څکاك شو، يا په عامه لاره کښې متيازې ته کيناستل شو، يا د لسے

نو رکا ر ونه چه په هغې سړے سپک شمکاري، دا قول دمروّت نه خلاف دی.

تپوس:- د راوی د ضبط څه مطلب دے ؟

جواب:- ضبط دیته وائی، چه راوی کوم حدیثو نه اوریدلی وی۔ د هغې د نه هیرولو خیال ساتل، او هر وخت ئے یاد ساتل، ترد ے چه کله ئے اوغواړی نو پوره پوره ئے بیان کړی۔

تپوس:- ضبط په څو قسمه دے ؟

جواب:- ضبط په دوه قسمه دے۔ یو ضبط صدر چه په زړهٔ کښی دیاد ساتلو سره تعلق لری، او دوئم ضبط کتاب دے، چه د کتاب د محفوظ ساتلو سره تعلق لری۔ ترڅو چه ئے ادا (بل ته رسول) کړے نه وی۔

تپوس:- په عدالت باندے اعتراضات څو دی ؟

جواب:- پنځه دی، اول دا چه راوی دروغژن وی، دوئم دا چه د دروغو تهمت پرے لګیدلے وی، دریم دا چه راوی فاسق وی۔ څلورم دا چه راوی مجهول وی، پنځم دا چه راوی بدعتی وی۔

تپوس:- په ضبط باندے اعتراضات (طعن) څو دی ؟

جواب:- دا هم پنځه دی۔ اول دا چه راوی مکمل غافل او بے پرواه وی۔ دوئم دا چه ډیرے غلطئی ترے کیږی، دریم دا چه د ثقه راویانو مخالفت کوی۔ څلورم دا چه وهم پرے راشی او یو روایت د بل روایت سره یا یو سند د بل سند سره ګډوډ کړی او پنځم دا چه سیئ الحفظ وی، یعنی حافظه ئے کمزورے او خرابه وی۔

تپوس :- د راوی د دروغژن کیدلو څه مطلب دے ، یعنی صرف په حدیثو کښی دروغژن وی یا په هر شی کښی ؟

جواب :- د راوی دروغژن کیدل دادی، چه په حدیثو کښی دروغ وائی، یعنی داسے خبرے روایت کوی ۔چه پیغمبر علیه السلام نوی کړی د دروغژن راوی روایت ته موضوع حدیث وائی ۔

تپوس :- د دروغژن راوی څه حکم دے ؟

جواب :- چا چه په قصد سره په حدیثو کښی دروغ اووے ، او ثابت شو ۔ نو بیا ټول عمر د هغه روایت نه قبلیږی ۔ اگر که یو ځل ئے دروغ ویلی وی، او توبه ئے ویستلی وی ۔ بیا هم د هغه حدیث نه قبلیږی ۔ تر دے چه بعضے عالمانو په حدیثو کښی دروغو ته کفر ویلی دی ، ځکه چه په حدیث شریف کښی راځی "من کذب علی متعمدًا فلیتبوأ مقعده من النار" چا چه په ما باندے په قصد سره دروغ اووے ، هغه دِ ځان له په دوزخ کښی ځائے اونیسی ۔

تپوس :- موضوع حدیث څه ته وائی ؟

جواب :- په کوم راوی چه په پیغمبر علیه السلام د دروغو ویلو الزام وی، د داسے راوی روایت ته د محدثینو په اصطلاح کښی موضوع حدیث وائی ۔ مطلب دا چه یو سړے د ځانه په دروغه باندے یو خبره جوړه کړی او بیا ئے پیغمبر علیه السلام ته منسوبه کړی ۔ دیته موضوع وائی ۔

تپوس:۔ د موضوع حدیث حکم څه دے ؟

جواب:۔ موضوع حدیث د کمزورو حدیثونو د یو قسم شمار لے کیږی۔ بعضے عالمان خو موضوع حدیث هډو په حدیثو کښې شماری هم نه، بلکه یو جدا شے ئے گنړی۔

تپوس:۔ متروک حدیث څه ته وائی ؟

جواب:۔ متروک په لغت کښې پریښودلی شوی ته وائی، او د محدثینو په اصطلاح کښې هغه حدیث ته وائی، چه د هغې په راوی باندے د دروغو وئیلو تهمت لګیدلے وی۔ او دا روایت د دے دروغژن راوی نه علاوه بل چا ذکر کړے هم نه وی۔ او د شریعت د معلومو او مسلمو قاعدو نه خلاف وی۔ او دا د متروک حدیث اوّل قسم دے۔ د متروک حدیث دویم قسم دا دے، چه راوی ئے د حدیثو نه علاوه په نورو خبرونو کښې په دروغو وئیلو ښکاره وی۔ په حدیثو کښې ئے دروغ وئیلی وی او کنه، د متروک دا قسم د رومبی قسم نه ښکم دے، خو متروک دواړو ته وئیلے کیږی۔ د محدثینو د دے کلام "حدیثه متروک وفلان متروک" هم دا مطلب دے۔

تپوس:۔ که متروک الحدیث راوی توبه او باسی، نو روایت ئے قبلیږی کنه ؟

جواب:۔ هو، که توبه او باسی، او توبه و یستل ئے ثابت شی، او په خبرو اترو او کارونو کښې ئے د رښتیاوُ نخے ښکاره شی۔ نو حدیث ئے

قبلیږی، پاتے شو هغه کس چه د عادت په طور نه، بلکه هسے چرته په هیره دروغ اووائی او دا دروغ ئے په حدیث نبوی کښ نه وی ویلی، نو دا هم گناه ده۔ خو حدیث ته ئے موضوع یا متروك نه ویلے کیږی۔

**تپوس:** که یو راوی داسے وی۔ چه په هغه د عملی فسق الزام تکید لے وی او یا داچه غلطئ او کمزورتیاگانے ترے زیات کیږی۔ نو د داسے راوی روایت ته څه ویلے کیږی؟

**جواب:** د دے دوارو قسمو راویانو روایت ته منکر ویلے کیږی۔ او د منکر مطلب مخکښ تیر شو۔ او هغه داچه ضعیف حدیث د قوی حدیث نه مخالف وی۔ دا خبره پیژندل پکار دی چه د قوی حدیث مخالفت د دے ذکر کړے شوی عیبونو په وجه سره هم وی د دے وجے نه چه کوم راوی کښ دا عیبونه موجود وی۔ د هغه روایت ته منکر ویلے کیږی

**تپوس:** مبهم او مجهول حدیث څه ته وائی؟

**جواب:** که په یو راوی کښ د هغه خبرونه چه روستو ذکر کیږی یوه خبره هم موجوده وی۔ نو د داسے راوی روایت ته مبهم او مجهول ویلے کیږی۔

**جهالت** په دوه قسمه دے۔

(۱) اول داچه د راوی کښ صفتونه وی۔ لکه نوم، کنیت، لقب، پیشه او نسب۔ چه په دے صفتونو کښ په یو صفت سره مشهور وی۔ او بیا هم د څه خاص غرض د پاره په داسے صفت ذکر کړے شی۔ چه په هغے

مشهور نہ وی۔ او دا دے پہ وجہ جهالت راغلی۔ ځکہ چہ دسړی دا گمان شی چہ کیدے داخوک بل راوی دے۔

(۲) دویم داچہ روایتونہ نوے کم وی، یا ئے شاگردان کم وی او دا دے پہ وجہ سرہ پہ خلقو کښی مشهور نشی، نو ملے راوی تہ هم مجهول وائی۔

(۳) دریم داچہ داختصار پہ وجہ سرہ دراوی نوم پورہ وانخلی، او دنوم پہ ځائے او وائی" اخبرنی فلان" یا "شیخ" یا "رجل" نو پہ دے درے وارړو صورتونو کښی دے حدیث تہ مبهم وائی۔

تپوس:۔ د مبهم حدیث او د مجهول راوی دحدیث څہ حکم دے؟

جواب:۔ قبول نہ دے ځکہ چہ د قبول والی شرط عدالت دے، او کلہ چہ دراوی نوم او ذات مبهم وی، نو دهغہ دعدالت پتہ بہ څنگہ اولگی؟ تردے چہ کہ مبهم او مجهول د تعدیل پہ لفظ سرہ روایت اوکړی، او او وائی۔ " اخبرنی ثقة" یا دا دے پشان نور الفاظ، نو صحیح خبرہ دادہ، چہ روایت ئے قبول نہ دے، ځکہ چہ کیدیشی چہ دا دے راوی پہ نیز د دہ راوی ثقہ وی۔ او د نورو پہ نیز مجروح او مطعون وی (ثقہ نہ وی) هون دا دومرہ خبرہ دہ۔ چہ داحدیث پخپلہ دراوی دپارہ بہ حجت او دلیل وی، خو دنورو دپارہ بہ حجت نہ وی۔

تپوس:۔ مجهول راوی پہ څو قسمہ دے؟

جواب:۔ پہ دوہ قسمہ دے۔ یو داچہ دحدیث راوی نہ ذکر شوے

وی او نه ئے نوم اغستے شوے وی ۔ خو یو بل ثقه کس د دے راوی توثیق کړے وی ۔

دویم مجهول الحال ، او هغه داچه دوؤ کسانو دیو راوی نه روایت کړے وی ۔ خو نه ئے ورله نوم اغستے وی او نه ئے چا توثیق کړے وی ۔ د اولنی قسم اګرچه نوم نه د ے اغستے شوے خو توثیق ئے شوید ے ۔ د ے دویم قسم ته مستور الحال هم وائی ۔

**تپوس :-** د مستور الحال راوی روایت قبول د ے کنه ؟

**جواب :-** د مستور الحال راوی د حدیث په قبلولو کښی بعضے عالمانو اختلاف کړید ے ۔ خو د جمهورو عالمانو په نیزد قبول نه د ے ۔ خو صحیح خبره داده چه که په مستور الحال راوی کښی د رد او اعتماد دواړه احتمالونه موجود وی ، نو بیا پکښی توقف پکار د ے ترد ے چه پته ئے اوکی ۔

**تپوس :-** د بدعتی روایت قبول د ے کنه ؟

**جواب :-** ترڅو چه د بدعت مطلب او د هغے قسمونه نه وی پیژندلے شوی ۔ جواب ئے نه واضحه کیږی د د ے وجے نه اول د بدعت مطلب او قسمونه ذکرکوؤ ، له هغے نه روستو به جواب ذکر کوؤ ۔

## د بدعت لغوی او شرعی مطلب

بدعت په لغت کښی پیدا کولو ته وائی ، او د شریعت په اصطلاح کښی هر هغه عقیدے او کارته وئیلے کیږی ، دکوم ثبوت چه د شریعت نه نوی ۔

او خلقو له ځانه جوړ کړے وی - که د ثواب د پاره ئے جوړ کړے وی، او یائے د ګناه نه د بچ کیدو په خیال - د هر بدعت د جائز کولو د پاره د عبدالله بن مسعودؓ د دے حدیث " ما رآه المسلمون حسنا فهو عند الله حسن " نه دلیل نیول صحیح نه دی - ځکه چه مؤمن او مسلمان د ایمان او اسلام او کتاب الله او د حدیثو په رڼړا کښ ښه (حسن) وائی - داسے نه چه محض د خپل خواهش په وجه سره هر شی ته ښه وائی - په دے حدیث کښ د "المسلمون" لفظ د بدعت ټولے دروازے بندے کړی دی - بل دا چه په " المسلمون " کښ " الف لام " د عهد خارجی د پاره دے، او صحابه کرامؓ ترے مراد دی - او د صحابه کرامو نه علاوه د چا د تحسین (څه شی ته ښه وئیل) هیڅ اعتبار نشته. بهرحال دا حدیث د هر بدعت د پاره د جواز سند ګرځول سراسر نا انصافی ده -

## د بدعت قسمونه

بدعت په دوه قسمه دے، یو هغه چه د عقیدے سره تعلق لری - او بل هغه چه د عمل سره تعلق لری - عملی بدعت محدثین په فسق کښ شماری نو دلته د بدعت نه مراد د عقیدے بدعت دے، اوس یا تے شوه دا خبره چه د داسے بدعتی روایت قبول دے او کنه ؟ نو په دے باره کښ صحیح او اعتباری خبره داده چه که بدعتی له داسے شی نه منکر وی، چه متواتر وی- او د دین د ضروریاتو نه شمیرلے کیږی - نو د داسے قسم بدعتی روایت مردود دے، قبول نه دے - او که چرے د دین د ضروریاتو نه

منکرنه وی. او ضبط اوتقوی وی پکښې، او خپل بدعت ته څوک نه رابلي او دخپل بدعت تائید اومرسته نکوی، نو دهغه روایت مردود او ناقابل قبول نه دے، دصحاح سته په راویانو کښې چه کوم بدعتي راوی په نظر راځي. هغه له دے دویم قسم دے.

**تپوس:-** مضطرب حدیث کوم حدیث ته وائي ؟

**جواب:-** اضطراب په لغت کښې د اوبو دموجونو حرکت ته وائي. او د خلل اوفساد په معنی راځي - نومضطرب هغه شي ته وائي چه څه نقصان او فساد وی پکښې- او مضطرب حدیث هم دڅه خلل اوفساد نه خالی نه وی- د محدثینو په اصطلاح کښې مضطرب هغه حدیث ته وائي چه په مختلفوطرقو اوسندونو سره راغلے وی- اودیوبل سره داسے متعارض وی چه تطبیق اوجمع پکښې آسانه نه وی -اوټول دیوبل سره په قوت اوضعف کښې برابر [illegible] وی- اویوله په بل باندے ترجیح ورکول هم آسان نه وی-

**تپوس:-** اضطراب په څوقسمه دے ؟

**جواب:-** اضطراب په دوه قسمه دے- یو اضطراب په متن کښې او دویم اضطراب په سند کښې- کله اضطراب له یو راوی نه وی، اوکله له څنو راویانو نه وی -کله دیوشي په مخکښې کولو کښې اضطراب وی، اوکله په روستو کولو کښې-

**تپوس:-** دثقه راویانو مخالفت چه داعتراض سبب دے، په څوقسمه دے ؟

**جواب:-** دامخالفت تقریباً په اووه قسمه دے (۱) په اسناد (سند بیانولو) کښې اختلاف (۲) په متن کښې مخالفت (۳) دحدیث په الفاظو کښې دکمی یا زیاتوالی مخالفت (۴) په وړاندے یا په روستو ذکر کولو کښې اختلاف (۵) کمے یا زیاتے کول (۶) بدلول (۷) دراویانو په نومونو کښې یا د متن په اجزاء او ټکړو کښې غلطی کول، یا ددے په شانے نورے غلطیانے - په دے ټولو صورتونو کښې حدیث ته مضطرب حدیث وائی -

**تپوس:-** دمضطرب حدیث حکم څه دے؟

**جواب:-** که تعارض ختمول ممکن وی او تطبیق (جمع کول) پکښې کیدیشی خو سنه، کنے بیائے حکم دادے چه توقف پکښې پکار دے -

**تپوس:-** که په یو راوی دوهم تهمت لګیدلے وی، دهغه روایت ته څه نوم وائی؟

**جواب:-** که روایت ئے په یقین سره نوی کړے، او هسے دوهم په طریقه ئے کړے وی- او دقرائنو او نخو نخانو نه دوهم پته اولګی، اودغه شان پکښې نور هم دلیے علتونه موجود وی، نو دا سے راوی روایت ته معلل وئیلے کیږی -

**تپوس:-** دراوی دوهم به څنګه پته لګی؟

**جواب:-** ددغه روایت تمام طرق جمع کولو سره دراوی دوهم پته لګیدیشی، اودا دحدیث په فن کښې دټولو نه ګران او مشکل کار دے - ددے وجے نه ددے دراز صرف هغه کس لګولے شی چه ډیر پوهه وی، حافظه ئے بنه ډیره وی-

او د راویانو او حدیثو د مر تبے نه سینه خبر وی ـ لکه مخکښینی اوچت اوچت علمائ چه په امام دارقطنی ئے سلسله ختمه ده ـ

**تپوس:-** د راوی د سوء حفظ (یعنی خرابه حافظه) څه مطلب دے؟

**جواب:-** سوء حفظ دیته وائی، چه د راوی غلطیانے د صواب (سمسا) نه او سهو او هیره ئے د حفظ (یاد ساتل) نه زیات وی، او یا ورسره برابر وی ـ او که داسے وی چه غلطی او هیر تر ے کله کله واقع کیږی ـ نو د دے اعتبار نشته، ځکه چه د داسے غلطئ او هیر نه څوک هم خالی نه وی، او بلکے صواب (سمسا) او حفظ او اتقان ئے زیات وی ـ او غلطئ او هیر ئے کم وی ـ نو داسے راوی ته سیئ الحفظ (بدے حافظے والا) نه وئیلے کیږی ـ

**تپوس:-** د سیئ الحفظ (بدے حافظے والا) راوی حکم څه دے؟

**جواب:-** که چرے سوء حفظ همیشه وی ـ نو د داسے راوی روایت معتبر نه دے ـ او که کله کله وی، همیشه نه وی ـ د اختلاط (گډوډکیدل) یا د بوډاوالی په وجه سره وی، یا په سترګو ړوند شی، یا د کومو کتابونو نه چه ئے روایت کولو، هغه ضائع شوی وی ـ نو په دے صورتونو کښی راوی ته مختلط وائی، او س که چرے داپته لګیدے شی چه دا دا روایتونه ئے د اختلاط نه مخکښی بیان کړی ـ او دا دا ئے د اختلاط نه روستو دی کوم روایتونه چه ئے د اختلاط نه مخکښی بیان کړی، هغه به معتبر وی ـ او کوم چه ئے د اختلاط نه روستو بیان کړی، هغه به معتبر نه وی ـ او بلکے

داپته نشي کېږي، نو بيا دهغه د روايتونو حکم دا دے چه توقف به پکښې کېږي، هاں که په دے ټولو صورتونو کښې د دغه روايت شواهد او متابع موجود وي، نو د اعتبار په درجه کښې به قبول وي۔

# پنځم باب

## دخبر واحد د قوت او ضعف په اعتبار سره د قسمونو په بيان کښې

تپوس:۔ صحيح حديث کوم يو دے ؟

جواب:۔ هر هغه حديث چه عادل او کامل الضبط راوي په متصل سند سره نقل کړے وي۔ او هر قسمه د شذوذ او علتونو نه پاک وي، هغے ته صحيح حديث وائي۔

تپوس:۔ حديث صحيح لذاته کوم يو حديث دے ؟

جواب:۔ د صحيح حديث په تعريف کښې چه کوم صفتونه ذکر شو، که دا ټول په حديث کښې موجود وي۔ نو هغے ته حديث صحيح لذاته وائي۔

تپوس:۔ حديث صحيح لغيره کوم يو حديث دے ؟

جواب:۔ که د حديث صحيح لذاته د صفتونو نه څه کمے بيا موندے شي۔ يعني هغه ټول صفتونه پکښې پوره موجود نه وي، خود کثرت طرق په وجه سره دا نقصان پوره کړيشي، نو په دے صورت کښې دے حديث ته صحيح لغيره وائي۔

کہ حسن لغیرہ وائی۔

تپوس :۔ حدیث حسن لذاتہ کوم یو حدیث دے ؟

جواب :۔ کہ چیرے او نقصان صرف د راوی پہ ضبط کښې وی، نو دیتہ حسن لذاتہ وائی۔

تپوس :۔ حدیث حسن لغیرہ کوم یو حدیث دے ؟

جواب :۔ هغه حدیث چه د هغے په ضعیف کیدو کښې توقف وی۔ خود قرائنو او د کثرت طرقو په وجه سره راجح او قابل قبول او کرځی، نو دیته حسن لغیره وائی۔

## حدیث غریب

تپوس :۔ د غریب حدیث څه معنی ده ؟

جواب :۔ غریب د صفت مشبه صیغه ده، په لغت کښې هغه چانه وئیلے شی څوک چه یواځې وی۔ او د خپلو خپلوانو نه لرے وی۔ او د محدثینو په اصطلاح کښې غریب هغه حدیث ته وائی، چه د هغے راوی یو کس وی۔ که د حدیث په ټولو یا بعضو طبقو کښې یو راوی وی، نو دیته غریب حدیث وائی، او که په بعضو طبقو کښې دیو نه زیات شی، بیا ورته هم غریب وئیلے کیږی، ځکه چه پدے فن کښې د اقل (کم) اعتبار وی، ځکه د عزیز حدیث د پاره شرط دے، چه د هغے دوه راویان وی، که په ټولو طبقاتو کښې وی او که په بعضو طبقاتو کښې۔

**تپوس:-** غریب مطلق یا فرد مطلق کوم یو دے ؟

**جواب:-** فرد مطلق دا دے، چه غرابت په اصل سندکښی یعنی دسند په اخیرکښی صحابی طرفته وی۔ یعنی چه دسند په اخیرکښی راوی یو وی اوس که دا غرابت په ټولو طبقوکښی پاتے وی، اوکنه، یو شے وی۔

**دغریب مطلق مثال** | حدیث "انما الاعمال بالنیات" چه راوی ئے صرف حضرت عمربن الخطاب رضی اللہ عنہ دے، محدثینو دیته غریب مطلق وئیلے دے۔

**تپوس:-** غریب نسبی یا فرد نسبی کوم یو دے ؟

**جواب:-** غریب نسبی هغه حدیث ته وائی، چه غرابت ئے د سند په مینځکښی وی۔ یعنی هغه روایت چه په اصل سند کښی ئے دیو نه زیات راویان روایت کړی۔ او بیا د هغه راویانو یو راوی منفرد شی۔ یعنی یو راوی ئے روایت کړی۔

**دغریب نسبی مثال** | مالك عن الزهری عن أنس "أن النبی صلی اللہ علیه وسلم دخل مكة وعلی رأسه مغفر" په دے روایت کښی امام مالك دزهری نه یواځے راوی دے۔ او دے حدیث ته محدثینو فرد نسبی وئیلے دے۔

**دفرد نسبی وجه تسمیه** | فرد نسبی ورته په دے وجه وائی، چه تفرد (یواځے والے) دیو راوی په نسبت سره دے۔

## دفرد نسبی قسمونه

**تپوس:-** فرد نسبی په څو قسمه دے ؟

**جواب :-** په څلور قسمه دے۔

اول هغه روایت چه ثقه راوی پکښ متفرد وی، لکه محدثین چه وائی "لم یروه ثقة إلا فلان"

دویم هغه چه یو خاص راوی د بل خاص راوی نه متفرد وی۔ اګر که دغه بل راوی نه په ګڼړو طرقو سره دغه روایت شوے وی، لکه محدثین چه وائی "تفرد فلان عن فلان"

دریم هغه چه په هغے کښ دیو ښار یا دیوے علاقے راویان متفرد وی، لکه محدثین وائی، "تفرد به أهل مكة أو الشام"

څلورم دا چه دیو ښار یا دیوے علاقے راویان دیو ښار یا دیوے علاقے د راویانو نه متفرد وی، لکه محدثین چه وائی "تفرد به أهل البصرة عن أهل المدينة أو تفرد به أهل الشام عن اهل الحجاز"

**د غریب حدیث نور قسمونه** محدثینو غریب حدیث د سند او متن په لحاظ سره په دوه قسمه تقسیم کړے۔

(۱) غریب متناً او سنداً :- یعنی هغه حدیث چه متن ئے یواځے یو راوی روایت کړے وی۔

(۲) غریب سنداً نه متناً :- هغه حدیث چه متن ئے ډیرو صحابه کرامو روایت کړے وی او د صحابه کرامو نه صرف او صرف یو راوی روایت کړے وی، د غریب حدیث دا دے دویم قسم په باره کښ امام ترمذیؒ وائی "غریب من هذا الوجه"

**تپوس:-** مقبول حدیث کوم یو دے ؟

**جواب:-** مقبول حدیث هغه دے ، چه دهغې دراوی رښتیا وئیل په دروغو بانده زیاتوالی وی. دمقبول حدیث حکم داد ے ، چه هم ترے استدلال واجب دے - او هم پرے عمل کول واجب دی .

**تپوس:-** مردود حدیث کوم یو دے ؟

**جواب:-** مردود حدیث هغه دے . چه دهغې دراوی دروغ وئیل په رښتیا وئیلو بانده زیات وی . دمردود حدیث حکم داد ے چه نه ترے استدلال جائز دے ، او نه پرے عمل کول جائز دی .

**تپوس:-** ضعیف حدیث کوم یو دے ؟

**جواب:-** ضعیف په لغت کښې دقوی ضد ته وائی . او ضعف په دوه قسمه دے .
(۱) حسی ضعیف (۲) معنوی ضعیف - دحدیث په فن کښې د معنوی ضعیف نه بحث کیږی . دمحدثینو په اصطلاح کښې ضعیف حدیث هغه دے ، چه د حسن حدیث صفات پکښې موجود نه وی ، یعنی دحسن حدیث د شرطونو نه پکښې یو شرط نه وی . لکه علامه بیقونی په خپله منظومه کښې وائی :

وکل ما عن رتبة الحسن قصر  فهو الضعیف وله أقسام کثر

## دمدلس بحث

**تپوس:-** مدلّس حدیث کوم یو دے ؟

**جواب:-** مدلّس حدیث هغه دے ، چه دسند نه دراوی عیب زیدل

پټ وي پته ئے نه لګي. يعنې راوي دېو داسې شيخ نه چه د هغه زمانه ئے موندلې وي او ملاقات ئې ورسره ثابت وي، د هغه نه يو داسې حديث روايت کړي، چه اوريدلے ئے ترې نه وي. خو داګمان وي چه اوريدلے به ئے وي. لکه اووائي "عن فلان" او يا اووائي "قال فلان" دېته "تدليس في الإسناد" وائي

# د تدليس قسمونه

**تپوس:-** تدليس په څو قسمه دے؟

**جواب:-** تدليس په درے قسمه دے، اول تدليس في الاسناد (په سند کښې تدليس) لکه چه مخکښې ذکرشو، يعنې د خپلے زمانے ديو داسے راوي نه روايت اوکړي چه ملاقات ئے ورسره شوے وي سماع ئے ترېنه ثابته نه وي، خو د سماع ګمان وي۔

(۲) دويم تدليس في الشيوخ :- يعنې خپل استاذ په داسے نوم يا کنيت يا لقب يا نسبت يا صفت سره ذکر کړي، چه په هغے سره مشهور نه وي۔ ترد ے چه پيژندے هم نشي۔

(۳) دريم تدليس تسويه :- هغه دا چه خپل شيخ خو ذکر کړي، خو د استاذ استاذ يا د هغه نه پورته راوي ذکر نکړي، د دے وجے نه چه د غه يا ضعيف وي، او يا وړکوټے وي کم عمر والا وي۔

دويم صورت دا دے، چه خپل استاذ خو ئے ثقه وي، خو په دا سے

لفظ سره روایت اوکړي، چه د بل استاذ نه د سماع احتمال لري، دا صرف د خپل حدیث د تحسین دپاره کوي. اودا د تدلیس تسویه بدترین قسم دے.

**تپوس:-** مرسل خفي کوم یو حدیث د ے ؟

**جواب:-** مرسل خفي هغه ته وائي، چه راوي دیو داسے شیخ نه روایت اوکړي، چه زمانه ئے یوه وي، خو د ملاقات ئے ورسره پته نه لګي، او روایت په داسے لفظ سره اوکړي، چه د سماع ګمان پرے کیږي.

**تپوس:-** د مدلّس او مرسل خفي په مینځکښ څه فرق د ے ؟

**جواب:-** مدلس هغه حدیث ته وائي، چه راوي ئے د داسے شیخ نه روایت کړي، چه ملاقات خو ئے ورسره ثابت وي، خو دا حدیث ئے ترے نه وي اوریدلے. او مرسل خفي هغه حدیث ته وائي، چه راوي ئے د داسے شیخ نه روایت کړي، چه زمانه ئے یوه وي، خو ملاقات ئے ورسره ثابت نه وي. مقدمۂ اعلاء السنن ص۵ طبع قدیم

## د مرسل قسمونه

**تپوس:-** مرسل په څو قسمه د ے ؟

**جواب:-** مرسل په دوه قسمه د ے،

(۱) مرسل جلي:- هغه دا چه د راوي غورزیدل د سند نه ظاهر وي.

(۲) مرسل خفي:- هغه دا چه د راوي غورزیدل د سند نه ښکاره نه وي. بلکه پټ وي - او راوي ئے په داسے رنګ روایت کړي، چه د مروي عنه

(د چا نه چه روايت کوي) سره ئے معاصرت (ديو ے زمانے کيدل) ثابتيږي.
خو دملاقات ئے ودسره په نه کيږي، کوم محدثين چه مرسل په مدلس کښے شاملوي، هغوئ دمدلس دا تعريف کړے - چه مدلس هغه حديث ته وائي.
چه دراوي غورزيدل د سند نه ښکاره نه وي پټ وي. مقدمه فتح الملهم ص۹۱ طبع جديد

## دمدلس او مرسل خفي په مينځکښي يو بل فرق

ارسال خفي کونکے او مدلّس دواړه ديو داسے شيخ نه روايت کوي، چه سماع ئے ترے ثابته نوي. خو په داسے لفظ سره ئے ذکر کړي، چه دسماع احتمال وي پکښې، کله داسے هم اوشي چه مدلّس نور حديثو نه د دغه شيخ نه اوريدلي وي خو دا حديث ئے ترے نه وي اوريدلے، ليکن ارسال خفي کونکے ددغه شيخ نه هيڅ نوي اوريدلي، نه ئے ترينه دا روايت اوريدلے وي او نه له دينه علاوه نور روايتونه، بلکه صرف ملاقات ئے ورسره ثابت وي يا معاصرت. تيسير مصطلح الحديث ص۷۹

## دتدليس نور قسمونه په بل طرز

(۱) تدليس في الاسناد دادے چه راوي ديو داسے شيخ نه روايت اوکړي چه سماع ئے ترے ثابته وي، خو دا حديث ئے ترے نه وي اوريدلے، او نه ئے دسماع صراحت کړے وي.

(۲) تدليس تسويه، داسے چه راوي دخپل شيخ نه روايت اوکړي. او د دوو ثقه راويانو په مينځکښي چه کوم راوي ضعيف وي، هغه ذکر نکړي.

یعنی شیخ ئے ثقه وی او د ضعیف راوی نه ئے روایت کړے وی، او هغه ضعیف راوی د بل ثقه راوی نه روایت کړے وی، مدلِّس هغه ضعیف راوی د میځه او باسی او ذکر ئے نکړی، د پاره د دے چه خوک ئے په حدیث د ضعیف کیدو گمان او نکړی۔

(۳) تدلیس فی الشیوخ :- هغه داد ے چه راوی د داسے شیخ نه روایت او کړی، چه له هغه نه ئے سماع ثابته وی۔ خو خپل شیخ په داسے نوم یا کنیت یا لقب او یا صفت سره ذکر کړی چه پیژندلی نشی۔ تیسیر المصطلح ص ۷۹ تا ۸۱

# شپږم باب

## مونږ ته د حدیث د رارسیدلو د قسمونو په بیان کښی

**تپوس :-** مونږ ته د رارسیدلو په لحاظ سره د حدیث څو قسمونه دی؟

**جواب :-** په دوه قسمه دی۔

(۱) متواتر حدیث، چه په ډیرو طرقو سره مونږ ته رارسیدلے وی۔

(۲) خبر واحد :- چه په یو څو طرقو سره مونږ ته رارسیدلے وی۔

## حدیث متواتر

**تپوس :-** حدیث متواتر کوم یو دے؟

**جواب :-** متواتر د اسم فاعل صیغه ده د تواتر نه، او تواتر په لغت کښی پرله پسے ته وائی۔ لکه وئیلے شی " تواتر المطر أی تتابع نزوله " یعنی باران پرله پسے او وریدو۔ او د محدثینو په اصطلاح کښی متواتر هغه

حدیث ته وائی چه دومره کثیر خلقو روایت کړے وی، چه په دروغو باندے دهغوئ جمع کیدل محال وی - یعنی متواتر هغه حدیث یا هغه خبر ته وائی، چه په هره طبقه کښ ئے دومره ډیر خلق روایت کړی، چه دهغوئ په دروغو باندے اتفـاق محال کیږی۔

## دحدیث متواتر شرطونه

**تپوس:-** دحدیث دمتواتر کیدو شرطونه څو دی؟

**جواب:-** د حدیث متواتر په تعریف کښ دغور کولو نه دا معلومیږی چه ترڅو په یو حدیث کښ څلور شرطونه نوی موندلی شوی نو تر هغے هغه حدیث ته متواتر نشی ویلے کیدے۔

(۱) اوّل شرط دادے چه روایت کوونکی ئے کثیر کسان وی۔ دکم نه کم کسانو په تعداد کښ اختلاف دے - لیکن د بعضے محدثینو په نیز دکم نه کم لس کسان دی۔

(۲) دویم شرط دادے، چه دراویانو داکثرت او ډیر والے د سند په ټولو طبقو کښ موجود وی۔

(۳) دریم شرط دادے، چه دومره کثیر وی، چه په دروغو باندے ئے اتفاق عادتاً محال وی۔

(۴) څلورم شرط دادے چه دغه حدیث یاخبر دمحسوس شئ په باره کښ وی الکه چه ویلے کیږی "سمعنا أو رأینا أو لمسنا" یاد دے پشلنے نور- او که چرے په یو عقلی امر باندے دلالت کوی، لکه حدوث عالم، نو هغه حدیث او خبر ته متواتر نه وئیلی۔

## دحدیث متواتر حکم

**تپوس:-** دحدیث متواتر حکم څه دے؟

**جواب:-** دحدیث متواتر حکم دا دے، چه په هغے سره مکمل یقین پیدا کیږی او مخاطب ئے په منلو باندے مجبوره کیږی. لکه څنګه چه یو شے سرے په خپلو سترګو اووینی، او په هغے کښی ورته هیڅ شک نوی، دغه شان متواتر حدیث یا خبر چه په کوم شی دلالت کوی، په هغے کښی څه شک نه وی، د متواتر ټول قسمونه قبول او معتبر دی، او د هغے دراویانو حالات لټولو ته حاجت نوی.

**فائده** داخبره پیژندل پکار دی، چه د یقین پیدا کیدلو دوه معنے دی. اوّل داچه د بل طرف احتمال بالکل نه وی، نه د دلیل په وجه سره او نه دعقل. دویم داچه د بل طرف احتمال د دلیل په وجه سره ختم شی، خو عقلی احتمال باقی وی.

حدیث مشهور هم د یقین د پیدا کولو فائده ورکوی، یعنی یقین پرے پیدا کیږی، خو په دویمه معنی سره چه د بل طرف عقلی احتمال موجود وی.

## د متواتر قسمونه

**تپوس:-** متواتر حدیث په څو قسمه دے؟

**جواب:-** په دوه قسمه دے (۱) متواتر د لفظ په اعتبار سره. (۲) متواتر د معنے په اعتبار سره. متواتر د لفظ په اعتبار سره هغه حدیث ته وائی، چه لفظ او معنے دواړه ئے د تواتر مرتبے ته رسیدلی وی. لکه حدیث

"من كذب على متعمدًا فليتبوأ مقعده من النار" چه اویاتۍ خواوشا صحابه کرامو روایت کړیدے - او متواتر د معنے په اعتبار سره هغه حدیث ته وائی، چه صرف معنی او مطلب ئے د تواتر من تیے ته رسیدلی وی- لکه د دعا د پاره د لاسونه اوچتول (رفع الیدین) تقریبا سل حدیثونه د پیغمبر علیه السلام نه روایت شوی، او په هر یو کښې د دعا د پاره د لاسونو اوچتول ذکر دے. سره د دے چه هر یو حدیث د مختلف واقعې په باره کښې دے، او یو ائے د تواتر حد ته نه رسی، خو په هر یو کښې د دعا په وخت کښې د لاسونو د اوچتولو ذکر دے - او د تواتر حد ته رسیدلے دے - تدریب الراوی (۲/۱۸۰) تیسیر المصطلح ص۲۰

## خبر واحد

تپوس :- خبر واحد کوم یو دے؟

جواب :- خبر واحد هغه حدیث یا خبر ته و ئیلے کیږی، چه روایت کوونکے ئے یو وی- او د محدثینو په اصطلاح کښې خبر واحد هغه حدیث ته وائی چه د متواتر حدیث شرطونه پکښې جمع نه وی، که یو کس روایت کړے وی- او که ډیر و، یو شے دے-

## د خبر واحد حکم

تپوس :- د خبر واحد څه حکم دے؟

جواب :- د خبر واحد نه علم نظری او استدلالی ثابتیږی، یعنی خبر واحد هم د یقین فائده ورکوی، خو هله چه د حدیث په ټولو طرقو کښې غور و فکر

اوشی اوداثابته شی، چه په سند او متن کښې ئې دهیڅ قسمه سقم او عیب نشته۔

## دخبرواحدقسمونه

تپوس:۔ خبرواحد په څو قسمه دے ؟

جواب:۔ خبرواحد دراویانو د تعداد په اعتبار سره په درے قسمه

دے۔(۱) مشهور (۲) عزیز (۳) غریب

تپوس:۔ دحدیث مشهور څه مطلب دے ؟

جواب:۔ مشهور په لغت کښې معلوم او ظاهر ته وائی، له دے وجے نه

هر شے چه مکمل ظاهر شی، هغه ته مشهور وئیلے کیږی۔ او د محدثینو په اصطلاح

کښې هغه حدیث ته وائی چه روایت کوونکی ئے درے یا د درے نه زیات وی۔ او

د تواتر مرتبے ته نه وی رسیدلے۔ لکه دا حدیث "ان الله لایقبض العلم

انتزاعًا ینتزعه" الحدیث

تپوس:۔ مشهور عرفی کوم حدیث ته وائی ؟

جواب:۔ مشهور عرفی هغه دے چه په خلقو کښې مشهور شی۔ او د

اصطلاحی مشهور شرطونه پکښې موجود نه وی۔ که په یو سند سره وی

او که په ډیرو سره۔ او یا ئے دسره سند نه وی۔ مشهور عرفی کله صحیح

وی او کله غلط۔

تپوس:۔ مستفیض حدیث کوم یو ته وائی ؟

جواب:۔ مستفیض داسم فاعل صیغه ده دباب استفعال نه، او د

"فاض یفیض" د بهید لو په معنی راځی - یعنی په لغت کښ خور شوی شی ته وائی - او په اصطلاح کښ کله د مشهور په معنی استعمالیږی، یعنی د مشهور مرادف دے - او د بعضے محدثینو په نیز د مستفیض خاص دے او مشهور عام دے. ځکه چه په مستفیض کښ شرط دا دے چه د سند دواړه طرفونه برابر وی، او په مشهور کښ دا شرط نشته - او د بعضے محدثینو په نیز د معامله برعکس ده - چه مشهور ته خاص او مستفیض ته عام وائی -

## حدیث عزیز

**تپوس:-** عزیز حدیث څه ته وائی؟

**جواب:-** عزیز د صفت مشبهه صیغه ده - د ضرب یضرب یا سمع یسمع د باب نه، د ضرب یضرب نه د کم او نادر په معنی دے - او د سمع یسمع نه د قوت او شدت په معنی دے - نو کوم حدیث ته چه عزیز وئیلے کیږی یا د کم والی په وجه سره یا د قوت په وجه سره، چه په کمزورو طرقو سره ثابت وی - او د محدثینو په اصطلاح کښ عزیز حدیث هغه دے چه راویان ئے د سند په ټولو طبقو کښ د دوؤ نه کم نه وی - او که په یو طبقه کښ د دوؤ نه زیات شی نو څه پرواه نشته - خو دا ضروری ده، چه په هره طبقه کښ د دوؤ نه کم نه وی -

**د عزیز حدیث مثال** بخاری او مسلم د حضرت انس رض روایت نقل کړے "قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا یؤمن احدکم حتی اکون احب الیه

من والده وولده والناس اجمعين" او هم دا حديث امام بخاريؒ د حضرت ابوهريرةؓ نه نقل کړے. محدثينو دے حديث ته عزيز ويلي دے. ځکه چه د حضرت انسؓ نه دا حديث دوه کسان يعنی قتاده او عبد العزيز بن صهيب روايت کړے. او له قتاده نه شعبه او سعيد روايت کړے. او د عبد العزيز نه اسماعيل بن عُليّة او عبد الوارث روايت کړے، او بيا د دے دواړو نه يو يو بل ډلے روايت کړے.

# اووم باب

## د مقبول خبر او د هغے د قسمونو په بيان کښی

تپوس:- خبر مقبول څه ته وائی؟

جواب:- خبر مقبول هغه حديث ته وائی، چه محدثينو قبول کړے وی او رد کړے ئے نه وی.

تپوس:- خبر مقبول په څو قسمه دے؟

جواب:- خبر مقبول په څلور قسمه دے. (۱) صحيح لذاته (۲) صحيح لغيره (۳) حسن لذاته (۴) حسن لغيره

تپوس:- د صحيح لذاته پيژندګلو څه ده؟

جواب:- صحيح په لغت کښی جوړ ته وائی. دا په حقيقت کښی د بدن د پاره استعماليږی. او مجازاً هغه حديث ته وائی. چه کمزورئے نه پاک وی. او په اصطلاح کښی هغه حديث ته وائی، چه سند ئے

له اوله تر اخيره پورے متصل وی ۔ او دا سے راوی نه نقل شوے وی، چه عادل او ضابط وی ۔ او هغه ئے دځان پشان دعادل ضابط راوي نه نقل کړی، او دهيڅ قسمه څه شذوذ ياعلت وريکښې نه وی ۔

(الف) دسند دمتصل کيدلو مطلب دا دے چه هر راوی دځان نه دپورته راوی نه پخپله دا حديث اخستے وی ۔ او د سند داخيره پورے هم دغه شان وی ۔

(ب) دراوی دعدالت مطلب دا دے چه هر راوی ئے مسلمان او عاقل او بالغ وی ۔ نه فاسق وی او نه تر ے دمروت نه خلاف څه کار شوے وی ۔

(ج) دراوی دضبط مطلب دا دے چه تام الضبط وی، په يادو وی او که د کتاب نه ۔

(د) دعدم شذوذ مطلب دا دے چه ثقه راوی دځان نه د (اوثق) زيات ثقه راوی مخالفت نه وی کړے ۔ او که مخالفت ئے کړے وی نو هغه حديث ته شاذ وائی ۔

(ه) دعدم علت مطلب دا دے چه څه علت پکښې نه وی ۔ او علت د محدثينو په نيزد هغه پټ سبب ته وئيلے کيږی ۔ دکوم په وجه سره چه په حديث اعتراض کيږی ۔ اګر که په ظاهره حديث دڅه علت نه پاك وی ۔

دصحيح لذاته شرطونه | تپوس ۔ دحديث صحيح لذاته شرطونه څو دی ؟

جواب :- پنځه دي لکه مخکښ تير شو، يعني (۱) د سند متصل کيدل (۲) د راوي عدالت (۳) د راوي ضبط (۴) د شذوذ نه پاکيدل (۵) د هر قسم علت نه پاکيدل.

## د صحيح لذاته مثال

تپوس :- د صحيح لذاته مثال څه دے؟

جواب :- د صحيح لذاته مثال دا دے، لکه امام بخاريؒ په خپل کتاب صحيح بخاري کښ ذکر کړے. "حدثنا عبد الله بن يوسف قال أخبرنا مالك عن ابن شهاب عن محمّد بن جبير بن مطعم عن أبيه قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم قرأ في المغرب بالطور" بخاري كتاب الاذان) دا حديث صحيح دے ځکه چه سند ئے متصل دے. او هر راوي د خپل شيخ نه سماع کړيده، او د امام مالك او ابن شهاب او د ابن جبير په "عن" سره روايت د سند د اتصال دپاره نقصان نه دے. ځکه چه دوئ مدلسين نه دي. بل ټول راويان ئے عادلان او ضبط والا دي. او د علت او شذوذ نه هم پاک دي. بل نه په ديکښ څه علت شته. او نه د ځان نه د پورته روايت سره متعارض دے.

**د حديث صحيح لذاته حکم** | د دے حديث حکم دا دے، چه د محدثينو او فقهاؤ او اصوليونو په نيزد په دے باندے عمل واجب دے. ځکه چه صحيح حديث د شريعت د دليلونو نه يو دليل دے. او مسلمان له پرے

عمل پرېښودل جائز نه دی۔

**تپوس :۔** د صحیح لغیره څه حکم دے ؟

**جواب :۔** صحیح لغیره هم هغه حدیث حسن لذاته دے، کله چه په بل طریق سره روایت کړے شی ۔که داوّل طریق پشانے وی یا لدینه اوچت وی۔ نو دیته صحیح لغیره وائی۔ او داځکه چه په دیکښې صحت دسند په وجه سره نه دے راغلے بلکه دبل طریق دمیلاوهلو په وجه سره راغلے ځکه ورته صحیح لغیره وائی۔

**د صحیح لغیره مرتبه** ددے حدیث مرتبه دحسن لذاته نه اوچته او د صحیح لذاته نه لاندے ده۔

**تپوس :۔** د صحیح لغیره مثال به څه وی ؟

**جواب :۔** لکه داحدیث " محمدبن عمرو عن أبی سلمة عن ابی هریرة ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لولا أشق علی أمتی لأمرتهم بالسواك عندكل صلاة " داحدیث دمحدثینو په نیزد صحیح لغیره دے، داحدیث امام ترمذیؒ په كتاب الطهارة کښې ذکر کړے دے۔ اوامام بخاریؒ اوامام مسلمؒ د "ابوالزناد عن الاعرج عن ابی هریرة" نه نقل کړے.

دابن صلاحؒ دقول مطابق محمّدبن عمروبن علقمه نوچه ددے حدیث راوی دے، بعضے محدثینو رښتینے وئیلے، او بعضے محدثینو پرے دسوء حفظ تهمت لګولے او بعضے محدثینو ورته ثقه وئیلی دی۔ اوکله

چه داحدیث په یو بل طریق سره هم روایت شوے۔ نو دد ے په میلاو ویدو سره دسوءِ حفظ هغه اعتراض ختم شو۔ او حدیث دصحیح درجے ته اورسیدلو۔

**تپوس:۔** تاسو وئیلی چه کله حدیث حسن لذاته په یو بل طریق سره چه د اوّل پشانے وی۔ یا د هغے نه اوچت وی، سره روایت شی۔ نو هغه صحیح لغیره شی، او س حسن لذاته کوم یو حدیث دے ؟

**جواب:۔** حسن لذاته هم هغه صحیح لذاته دے، خو یو شرط پکښ نه موندلے کیږی، یعنی د راوی ضبط کمزورے وی، لکه حافظ ابن حجرؒ وائی۔

"فان خف الضبط فالحسن لذاته" شرح نخبه۔ ص۲۹

**دحدیث حسن لذاته حکم** | حسن لذاته د صحیح لذاته پشانے دے، یعنی عمل کول پرے او دلیل نیول ترے لازم دی۔ اګرکه د صحیح لذاته نه په مرتبه کښ کم دے۔ ځکه چه ټولو محدثینو ترے هم استدلال کړیدے۔ او هم ئے پرے عمل کړیدے۔ او د اکثرو اصولیینو او فقهائی رائے داده چه حدیث حسن لذاته حجت دے۔

## دحدیث حسن لذاته مثال

**تپوس:۔** دحدیث حسن لذاته مثال څه دے ؟

**جواب:۔** دحدیث حسن لذاته مثال د امام ترمذیؒ دا حدیث دے۔

"حدثنا قتیبة حدثنا جعفر بن سلیمان الضبعی عن ابی عمران الجونی عن ابی بکر بن أبی موسی الأشعری قال سمعت ابی بحضرة العدو یقول قال رسول الله

صلی اللہ علیہ وسلم إن ابواب الجنة تحت ظلال السيوف ،، ترمذی ابواب فضائل الجہاد (ص ۲۹۵ ج ۱)

دا حدیث حسن لذاته دے ، ځکه چه دجعفر بن سلیمان نه علاوه نور ټول

راویان ثقه دی . او جعفر بن سلیمان صرف " صدوق " دے ، ثقه نه دے .

لدے وجے نه حدیث دصحیح دمرتبے نه اوغورځیدو ، او حسن شو .

## حسن لغیره

**تپوس :-** حسن لغیره کوم حدیث دے ؟

**جواب :-** هغه ضعیف حدیث چه په هغے کښې ضعف د راوی د

فسق او کذب (دروغ) په وجه سره نوی ، او په ډیرو طرقو سره روایت

شوے وی . نو دیته حسن لغیره وائی .

**دحسن لغیره مرتبه |** حسن لغیره په مرتبه کښې دحسن لذاته نه کم دے

او کله چه دد واړو په مینځ کښې تعارض راشی . نو حسن لذاته به په حسن لغیره

مقدم وی .

**دحسن لغیره حکم |** دحسن لغیره حکم دا دے ، چه دلیل نیول ترے

جائز دی .

**دحسن لغیره مثال |** د ترمذی دا حدیث " شعبة عن عاصم بن عبيد الله

عن عبد الله بن عامر بن ربيعة عن أبيه أن امرأة من بنى فزارة تزوجت

على نعلين فقال رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم أرضيت من نفسك ومالك بنعلين ؟

قالت نعم فأجاز " ددیه روستو امام ترمذیؒ وائی " وفی الباب عن

عمرو ابی هریرة وعائشة وأبی حدرد " په دے حدیث کښې عاصم بن عبیدالله د حافظے په لحاظ سره ضعیف دے، او امام ترمذیؒ دینه حسن وئیلی دی، ځکه چه په کښو طرقو سره روایت شویدے۔

**تپوس:۔** د محدثینو د دے قول "صحیح الاسناد" او "حدیث صحیح" په مینځ کښې څه فرق شته ؟

**جواب:۔** هو شته، د "حدیث صحیح الاسناد" مطلب دا دے چه د دے حدیث سند صحیح دے، خو کیدے شی چه په حدیث کښې څه شذوذ او یا څه علت موجود وی۔ او د "حدیث صحیح" مطلب دا دے۔ چه د صحت ټول شرطونه پکښې موجود دی۔

**تپوس:۔** د محدثینو د دے قول "حدیث حسن الاسناد" او "حدیث حسن" په مینځکښې څه فرق شته ؟

**جواب:۔** په دے دواړو کښې هم ( هغه ) فرق دے، کوم چه د "صحیح الاسناد" او "حدیث صحیح" په مینځکښې ځکښې تیر شو، یعنی د "حسن الاسناد" په وجه سره حدیث حسن کیدے نشی، کیدے شی، چه حدیث د سند په اعتبار سره حسن وی۔ او د متن په لحاظ سره ضعیف وی۔

**تپوس:۔** د امام ترمذیؒ یاد نورو محدثینو د دے قول "هذا حدیث حسن صحیح" څه مطلب دے؟ ځکه چه د صحیح تعریف یو دے۔ او د حسن تعـــریف بل۔

**جواب** :- په دې لوکښې ښه جواب چه حافظ ابن حجرؒ او علامه سیوطیؒ خوښ کړي یو دے هغه دا دے۔ (۱) چه که د حدیث دوه یا د دوو نه زیاتے سندونه وي، نو هغه یو سند په اعتبار سره حسن دے او د بل سند په اعتبار سره صحیح دے۔

(۲) او که د هغه حدیث یو سند وي، نو مطلب ئے دا دے، چه د بعضے محدثینو په نیز د دا حدیث صحیح دے۔ او د بعضے په نیز د حسن۔ دا سے معلومیږي چه د دواړو په جمع کولو کښې دے اختلاف طرفته اشاره ده۔ چه دد ے حدیث په باره کښې د عالمانو دوه قوله دي، یو د حسن او بل د صحیح۔ او یا دا چه ویونکي ته د ترجیح وجه معلومه نه ده، حُکم دواړه جمع کوي، او "حسن صحیح" وائي۔ واللّٰه أعلم

# اتم باب

## د حدیث د تحمل او ضبط او ادا په بیان کښې

**تپوس** :- تحمل او ضبط حدیث څه ته وائي ؟

**جواب** :- تحمل د محدثینو په نیز د معتبرو شرطونو سره د استاذ نه د حدیث اغستو ته وائي، او ضبط دیته وائي، چه څه ئے د استاذ نه اوریدلي وي۔ هغه دا سے یاد کړي، چه نورو ته په ښه شان د هغے تعلیم ورکولے شي۔

په دے خبره ځان پوهه کول پکار دی، چه د اصول حدیث عالمانو په دے باره کښې ډیر زیات کوشش کړے دے، چه د پیغمبر علیه السلام حدیث چه د اسلام دویم بنیاد دے. په مکمله طریقه سره خلقو ته اورسی. او د حدیث د ضبط او تحمل د پاره ئے شرطونه ایښی دی. او د حدیث ضبط او تحمل ئے د نورو علمونو د ضبط او تحمل نه بالکل جدا کړیدے. د پاره د دے چه د پیغمبر علیه السلام د علم نورو ته په رسولو کښې له هیڅ قسمه نقصان رانشی. او له حدیثو نه د خلقو باور ختم نه شی او د حدیثو منکرینو ته ځه بهانه په لاس ورنشی.

**تپوس:۔** د حدیث په تحمل کښې اسلام او بلوغ شرط دے او که نه؟

**جواب:۔** صحیح مذهب دا دے، چه اسلام او بلوغ ورله شرط نه دے. خو د صحیح او غلط په مینځ کښې د فرق کولو صلاحیت شرط دے، لیکن بل چا ته د رسولو په وخت کښې په راوی کښې د اسلام او بلوغ شرط دے، ځکه د راوی د شرطونو په بیان کښې وړاندے تیر شو.

**تپوس:۔** د حدیثو اوریدل (سماع) په څه عمر کښې مستحب دی؟

**جواب:۔** په دے باره کښې مختلف قولونه دی. خو صحیح قول دا دے چه د بالغید او د پوهے په وخت کښې چه د انسان حافظه په دا سے وخت کښې سنه مضبوطه وی او تیزه وی. د حدیثو اوریدل ډیر مناسب څه چه ضروری دی. د دے نه تکه نن صبا ځوانان په درس نظامی کښې، چه سړے په سترګو ړوند شی، په غوږونو کوڼ شی او غابښ ئے اوځی، پس

له هغې د حدیث اوریدل شروع کړې. او هغه هم په زرګونو صفحې صرف
په شپږو میاشتو کښې ـ

تپوس:ـ د تحمل حدیث څو طریقې دي ؟

**جواب:ـ** څوښ په زمانه کښې د تحمل حدیث طریقه داده، چه د حدیثو
کتابونه د پوهه او ماهر استاذ نه اووائی ـ لیکن د متقدمینو په نیزد یعنې
د کتابونو د تصنیف د زمانې نه مخکښې د تحمل اته طریقې وي ـ

(۱) د استاذ نه حدیث اوریدل ـ هغه داسې چه استاذ حدیث لولی، او شاګرد
ئې اوری. استاذ ئې په یادو لولی او که د کتاب نه ـ د غه شان که طالب صرف
اوری، او یا اوری هم او حدیث لیکی هم ـ یو شې دے ـ

(۲) د استاذ په مخکښې لوستل ـ د اکثرو محدثینو په نیزد دیته عرض وائی،
طریقه ئې داده، چه طالب حدیث لولی او شیخ ئې اوری، که طالب پخپله
لولی، او که د سبق په ملګرو کښې یو کس لولی، او بل ئې اوری ـ دواړه
یو شې دے ـ او په دیکښې هم څه فرق نشته، چه په یادو ئې لولی او که
له کتاب نه ـ لکه څرنګ چه په نن زمانه کښې کیږی ـ

(۳) د شیخ نه د هغه د روایاتو اجازت اغستل، که استاذ صرف زبانی اجازت
ورکړی او که او لیکی ورله، یو شې دے ـ لکه یو شیخ چاته اووائی، چه تاته اجازت
دے لما نه صحیح بخاری روایت کولے شې ـ

(۴) مناوله :ـ مناوله دیته وائی، چه یو استاذ چاله د خپلو روایتونو کتاب

ورکړې، او ورته او وائي، چه دا ځما د فلانکي شيخ نه روايتونه دي، دا تر ما نه نورو ته روايت کړه (بيان کړه) او کتاب ورله د عاريت يا د ملکيت په طور ورکړي - او د هغه سره ئې پريږدي، چه هغه ترې ځان له نقل اوکړي - او که صرف کتاب ورکړي او ورته او وائي چه دا ځما اوريدلي روايتونه دي - او نور څه او نه وائي، نو دا هم د مناولة يو قسم دے -

(۵) کتابت :- که استاذ خپل اوريدلي روايتونه په خپله اوليکي، يائې په بل چا اوليکي - او چا لره ئې ورکړي - نو دے ته کتابت وائي - که د روايت کولو اجازت ئې ورکړے وي او که نه، په دواړو صورتونو کښې طالب روايت کولے شي -

(۶) اعلام :- اعلام ديته وائي، چه شيخ طالب ته او وائي، چه دا حديث يا دا کتاب ځما اوريدلي حديثونه دي - په دے صورت کښې چه ترڅو ئې د روايت کولو صراحت نه وي کړے، او اجازت ئې نه وي ورکړے، روايت کول ئې جائز نه دي - ځکه چه کيديشي چه په دے کتاب يا حديث کښې څه خلل او نقصان وي -

(۷) الوصية :- وصيت دادے، چه شيخ د مرګ په وخت کښې يا په سفر د تلو په وخت کښې وصيت اوکړي - چه ځما له کتابونو نه يو کتاب نورو ته روايت کړه - په ديکښې صحيح مذهب دادے چه له دغه شيخ نه په دے طريقه روايت کول جائز نه دي - ځکه چه د کمئ او زياتي احتمال لري - او شيخ په خپله نشته چه د هغه نه تپوس اوکړے شي -

(۸) الوِجادة :- د "واو" په زیر سره - مصدر ئے "وجد" دے، او د موندلو په معنی راځی (اګرچه دا لفظ مولّد او جعلی دے، له عربو نه دے اورید لے شوے) وجاده دیته وائی - چه طالب د شیخ لیکلی شوی څه حدیثونه بیامومی، او له هغې نه روایت کول شروع کړی، او حال دا دے، چه نه ئے له دغه شیخ نه سماع شته او نه ورته د هغه له طرفه اجازت - د وجاده په طور روایت کولو کښې یو قسم انقطاع موجوده ده، خو بیا هم د حدیثو عالمانو د دے قسم روایت کولو اجازت ورکړے دے، خو د روایت کولو په وخت کښې ورله دا ضروری دی چه اووائی "وجدت بخط فلان"، او "قرأت بخط فلان کذا" او بیا روستو سند ذکر کړی -

**تپوس :-** که طالب د شیخ نه حدیث اورید لی وی، او س ئے بل ته روایت کوی نو څنګه به وائی ؟

**جواب :-** د "سمعت" یا "حدثنی" په صیغه سره به روایت کوی - او د "قرأت علی الشیخ" په صورت کښې به په "اخبرنی" سره - او د اجازت په صورت کښې به په لفظ "انبأنی" سره روایت کوی - او د مذاکرے د اوریدلو په صورت کښې به په "قال لی او ذکر لی" سره روایت کوی -

**تپوس :-** د "قرأت علی الشیخ" په صورت کښې به په کومه صیغه سره روایت کوی ؟

**جواب :-** سنه داده چه اووائی "قرأت علی فلان" یا "قرئ علیه

وأنا أسمع فأقر به " او "حدثنا قراءة عليه " هم ویلے شی ، او مشهوره داده چه صرف "أخبرنا " اووائی۔

**تپوس:-** د شیخ د اجازت د ورکولو په صورت کښې په کومه صیغه سره روایت کوی؟

**جواب:-** سنه داده چه اووائی "أجازني فلان" او که "حدثنا اجازةً" یا "أخبرنا إجازةً" اووائی نو هم ټهیک ده۔ لیکن د متأخرینو په نیز د به په دے حالت کښې به "أنبأنا" روایت کوی۔

**تپوس:-** د مناولة په صورت به په کومے صیغے او لفظ سره روایت کوی؟

**جواب:-** د ټولو نه غوره طریقه داده چه "ناولنی" یا "ناولنی وأجازنی" اووائی۔ او کهٔ "حدثنا مناولة" یا "أخبرنا مناولة" اووائی نو هم جائز دی۔

**تپوس:-** د کتابت په طور د اغستلو په صورت کښې به څنګه روایت کوی؟

**جواب:-** د کتابت صراحت به کوی او "کتب إلیّ فلان" یا "حدثني فلان کتابةً" او یا "اخبرني فلان کتابةً" به وائی۔

**تپوس:-** د اعلام په طور د اغستلو په صورت کښې به څنګه روایت کوی؟

**جواب:-** په دے صورت کښې به وائی "أعلمني شیخي بکذا "

**تپوس:-** د وصیت په طور د اغستلو په صورت کښې به څنګه روایت کوی؟

**جواب:-** په دے صورت کښې به وائی "أوصی إلیّ فلان بکذا" یا "حدثني فلان بکذا"

**تپوس:-** د وجادے په طور د اغستلو په صورت کښې به څنګه روایت کوی؟

**جواب :-** په دے صورت کښې به "وجدت بخط فلان کذا" یا "قرأت بخط فلان کذا" وائی -

**تپوس :-** د ادا د الفاظو دیکاو دپاره د محدثینو خاص خاص اصطلاحات دی - هغه کوم کوم دی ؟

**جواب :-** د حدیثو لیکونکی اکثر لاندینی اصطلاحات استعمالوی -

(۱) "ثنا" یا "نا" د "حدثنا" په ځائے (۲) "أنا" یا "أرنا" د "اخبرنا" په ځائے -

(۳) "ح" دیو سند نه بل سند ته د اوښتو په وخت کښې چه لوستونکے ئے "حا" لولی -

(۴) د "قال" حذف کول یعنی نه ذکر کول د سند په مینځکښې د اختصار په وجه - سره دد ے چه لوستونکی له ئے لوستل ضروری دی - لکه "حدثنا عبد الله بن یوسف أخبرنا مالك" په دیکښې لوستونکی له ضروری دی - چه "قال أخبرنا مالك" اووائی - کہ داسے نوی ، نو د اگمان به پیدا شی ، چه گنی عبد الله بن یوسف او مالك دواړه یوکس ته حدیث بیان کړیدے ، او د عطف حرف ئے د میځه حذف کړیدے - او حال دا دے ، چه دا بالکل غلطه خبره ده - همدغه شان "أنه" هم د سند داخیر نه د اختصار په وجه حذف کوی ، خو د دے لوستل هم ضروری دی - لکه "عن ابی هریرة قال" لوستونکی له پکار دی چه "عن ابی هریرة أنه قال" اووائی - کہ داسے نوی نو دا به ترے لا زم شی ، چه راوی به دابوهریره رض د طرفه وئیلی وی او ابوهریره رض به نه وی وئیلے - او دا هم غلطی ده - (خلاصه تیسیر المصطلح از ص۱۵۵ تا ص۱۶۴ -

# نهم باب

## د بعضے نورو اصطلاحاتو په بیان کښ

**تپوس:-** د روایت د قبلیدو د پاره بنیادی شرطونه څو دی ؟

**جواب:-** د جمهورو محدثینو او فقهاؤ په نیز دوه دی، یو عدالت او دویم ضبط -

(۱) د عدالت مطلب دا دے، چه راوی مسلمان وی، عاقل او بالغ وی - او د فسق او مروت نه خلاف اسباب پکښ نه وی -

(۲) د ضبط مطلب دا دے، چه راوی د ثقه راویانو نه مخالفت نکوی - او د غه شان د سوءِ حفظ، سخته غلطو، غفلت او هر وخته د وهم نه پاک وی -

**تپوس:-** د راوی د عدالت د پیژندګلو طریقه څه ده ؟

**جواب:-** د راوی عدالت په دوو طریقو سره پیژندلے کیدے شی -

(۱) یو دا چه د تعدیل نقول عالمانو هغه ته عادل وئیلے وی، یا له دوی نه یو کس ورته عادل اووائی -

(۲) دویم دا چه په عامو خاصو مسلمانانو کښ د هغه عدالت مشهور وی - او س که د چا عدالت او په خلقو کښ د هغه تعریف په عالمانو کښ مشهور وی نو هغه چا تعدیل ته حاجت نشته - لکه غلور واړه امامان

(امام ابوحنیفه او امام مالك او امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهم الله تعالیٰ)
او د حدیثو مشهور امامان یعنې سفیان ثوري او سفیان بن عیینه او امام
اوزاعي او امام عبد الله بن مبارك رحمهم الله تعالیٰ یاد دوی پشانے نور
دا سے مشهور امامان. تیسیر المصطلح ص۱۳۵ -

تپوس :- د راوي د ضبط د معلومولو څه طریقه ده ؟

جواب :- دا دا سے چه د ثقه راویانو سره ئے اکثر موافقت وی،
او مخالفت ئے ډیر کم وی - او که چرته خال خال مخالفت وی، نو څه
پرواه نشته خو که د ثقه راویانو نه ئے مخالفت زیات وی، نو دا به
د هغه په ضبط کښې نقصان وی. او روایت به ئے د استدلال قابل
نه وی - تیسیر المصطلح ص۱۳۶ -

تپوس :- په اصول حدیث کښې د لفظ "جرح" او "تعدیل"
بیا بیا ذکر راځي د دے څه مطلب دے ؟

جواب :- د جرح لفظ مصدر دے - او په لغت کښې د زخمي کولو
په معنی راځي، او په اصطلاح کښې جرح دیته وائي، چه د راوی
عیبونه ذکر شي، لکه د حافظے خرابتیا او د عدالت نشتوالے او
د تقوی کمے، او د ثقه راویانو مخالفت او د دروغو تهمت پرے لګیدل.

او "تعدیل" هم مصدر دے، او په لغت کښې ئے معنی دا ده چه
چا ته عادل وئیل یا د چا عدالت بیانول - او په اصطلاح کښې تعدیل

دچا عدالت بیانولو او دراوی نورصفتونه لکه ضبط او تقوی او مروت او دثقه راویانو موافقت ذکر کولو ته وائی، نو دجرح او تعدیل مطلب داشو چه دراوی ضعف (کمزوری) او قوت بیانول، چه دهغے په وجه سره دهغه روایت یارد کیږی او یا قبلیږی - دجرح او تعدیل ځان له مستقل الفاظ او شرائط او مرتبے او حکمونه دی - په دے وړه رساله کښ ددغه تفصیلاتو ذکر کول مشکل دی -

تپوس :- دغریب الحدیث څه معنی ده ؟

جواب :- غریب په لغت کښ هغه چا ته وائی - چه له خپلو خپلوانو نه لرے وی (لکه مسافر) نو دغریب الحدیث مطلب داشو چه معنی ئے مشهوره نه وی - او خلق ترے واقف نه وی - او په اصطلاح کښ غریب الحدیث دحدیث هغه الفاظو ته وائی چه معنی ئے ښکاره او ظاهره نوی، او دکم استعمالیدو په وجه سره پرے سړے نه پوهیږی - ددے مثالونه دحدیث په کتابونو کښ بے شماره دی -

تپوس :- "دمحکم الحدیث" او "مختلف الحدیث" څه مطلب دے ؟

جواب :- (۱) محکم په لغت کښ مضبوط ته وائی، او په اصطلاح کښ هغه حدیث ته وائی چه مقبول وی، او بل حدیث ئے دده بیشان مخالف نوی - احادیث نبوی اکثر همدغه شان وی -

(۲) "مختلف الحدیث" هغه حدیث ته وائی چه دبل مقبول حدیث سره

مخالف وی - او په اصطلاح کښې هغه مقبول حدیث ته وائی چه د بل مقبول حدیث نه مخالف وی - او د دواړو په مینځ کښې د عالمانو په نیزد تطبیق او جمه ممکنه وی -

**د مختلف الحدیث مثال** | حدیث " لاعدوی ولا طیرة..... " چه امام مسلمؒ روایت کړیدے، مخالف دے د هغه حدیث " فر من المجذوم فرارك من الأسد " چه امام بخاریؒ روایت کړیدے - د اوّل حدیث نه معلومیږی، چه هیڅ یو مرض متعدی نه دے - یعنی د یو نه په بل باندے نه لګی - او د دویم حدیث نه دا معلومیږی چه جذام (یو مرض دے چه په هغے کښې د انسان د بدن نه غوښه دوریږی او غوړ نه یږی) متعدی مرض دے -

**د دواړو حدیثونو په مینځ کښې د جمه کولو طریقه** | محدثینو د دے دواړو په مینځ کښې جمه داسے کړیده چه د ترمذی حدیث (په کتاب القدر کښې) " لا یعدی شیئًا " او د بخاری حدیث (په کتاب الطب کښې) " فمن أعدی الاوّل " (یعنی په اول اوښ خارښ چا ورپورے کړو) نه معلومیږی چه د مرض د متعدی کیدو نفی صحیح ده (یعنی د یو نه په بل مرض نه لګی) خو جذام د مریض نه د بچ کیدو حکم د دے د پاره دے، چه سړے په ګناه کښې مبتلا نشی - یعنی که څوک د داسے سړی چه په جذام مرض ناجوړه وی، بخوا کښې وی، او په هغه هم هغه مرض او لګی - نو هسے

نه چه دا سړے دا ګمان اوکړی چه ګنے دا دد ے بیمار پخوا کېن دپاتے کیدو په وجه سره په ما دا بیماری راپورے شوه، او په دے ګمان سره به ګناهګار شی ځکه چه نا جوړتیا او جوړتیا دواړه د الله تعالیٰ په اوس کښ دی۔ تیسیر المصطلح ص۵۵-۵۶

تپوس:۔ د "مؤتلف" او "مختلف" څه مطلب دے ؟

جواب:۔ مؤتلف او مختلف هغه دوه لفظونو ته وائی، چه یوشان لیکلے شی۔ (لکه چه دیوبل سره ئے الفت او تعلق وی) او په وینا کښ جدا جدا وی۔ لکه سلام (په تخفیف سره یعنی په لام باندے شد نه لوستل) او سلّام (په تشدید سره یعنی د لام په شد سره) او عِمار (د عین په زیر سره) او عَمّار (د عین په زور سره) او بزاز (په دوه زے سره) او بزار (په زے او رے سره)

تپوس:۔ متفق او مفترق څه ته وائی ؟

جواب:۔ دوه یا د دوو نه زیات داسے راویان چه نومونه ئے یوشان وی۔ او د پلارانو په نومونو کښ ئے فرق وی۔ لکه احمد بن منیر او احمد بن عبد الله۔ یا داسے چه خپل او د پلارانو نومونه ئے یوشان وی، او د نیکونو په نومونو کښ ئے فرق وی۔ لکه خلیل بن احمد چه په دے نوم باندے ګنړ کسان دی، خو د نیکونو په نومونو کښ ئے فرق دے۔ همدغه شان که په کنیت (لکه ابو عبد الله) کښ یوشان

وی، او په نوم کښې ئے فرق وی - یا یو ښار یا علاقې ته په نسبت کښې (لکه بصري يا کوفي یا شامي) یوشان وی، او په نوم کښې ئے فرق وی، یا لقب ئے یوشان وی، او په نوم کښې ئے فرق وی. دے ټولو قسمونو ته متفق ومفترق وائي -

**تپوس :-** متشابه څه ته وائي ؟

**جواب :-** متشابه په لغت کښې هغې ته وائي، چه معنی او مطلب ئے ښکاره او ظاهر نه وی - او د محدثینو په اصطلاح کښې دیته وائي، چه د دوو یا د دوو نه زیاتو راویانو نومونه یا ئے د پلارانو نومونه په لیکلو کښې یو شان وی، او په تلفظ او وینا کښې ئے فرق وی یعنې جدا جدا وی. لکه محمد بن عُقَیْل (دعین په پیښ سره) او محمد بن عَقِیْل (دعین په زور سره) او شُرَیْح بن النعمان (دشین په پیښ سره) او شَرِیح بن النعمان (د شین په زور سره) په اول مثال کښې د راویانو نومونه یوشان دی، او د پلارانو نومونه ئے یوشان لیکلے کیږی، خو په تلفظ (وینا) کښې ئے فرق دے -

دغه شان په دویم مثال کښې د راویانو د پلارانو نومونو کښې فرق نشته، او د راویانو د نومونو په تلفظ (وینا) کښې فرق دے - خو په لیکلو کښې ئے فرق نشته - ځکه چه د زور او زیر اعتبار نشته - اکثر د لیکلو په وخت کښې غور زیږی -

**تپوس :-** مهمل څه ته وائي ؟

جواب :- موهمل په لغت کښې هغه شي ته وائي، چه پرېښودے شوې وي.
او ظاهر نه وي. او په اصطلاح کښې دېته وائي، چه د دا سے دوو راويانو
نه روايت او شي، چه نومونه ئے يو شان وي، يا ئے د پلارانو نومونه
يو شان وي، يا ئے کنيت يو شان وي او يا ئے لقب يو شان وي. او په
دواړو کښې د فرق د پاره څه شے ذکر نوي. لکه امام بخاري ؒ د دوو کسانو
نه چه د دواړو نوم احمد دے روايت کړيدے، يو احمد بن وهب دے
او دويم احمد بن عيسى دے، ليکن پلار طرفته ئے ورله نسبت نه دے کړے.
په دا سے صورت کښې که دواړه راويان ثقه وي، خو خير دے، خو که دواړه
يا يو پکښ ضعيف وي، نو بيا پکښې ضرر دے.

# لسم باب

## د موضوع او انداز او ترتيب په لحاظ سره د کتابونو د قسمونو په بيان کښې

تپوس :- د موضوع او اسلوب (انداز) او ترتيب په لحاظ سره کتابونه
په څو قسمه دي؟

جواب :- د حديثو عالمانو د موضوع او ترتيب وغيره په لحاظ سره
د حديث کتابونه په لاندينى قسمونو تقسيم کړيدي.

① **جامع** د محدثينو په اصطلاح کښې جامع هغه کتاب ته وائي.
چه د حديثو ټول قسمونه په هغے کښې موجود وي. لکه د عقيدو سره

متعلق حدیث، او د احکامو، او رقاق، او د خوراک څکاک او د سفر او قیام او د تاریخ او سیر او د فتنو او تفسیر او مناقب او عیوبو سره متعلق حدیثونه - د حدیثو عالمانو په دے اته فنونو کښې په هر فن کښې ځان له ځان له جدا جدا کتابونه لیکلی دی - او هر یو له ئے خاص نوم ایښے دے، لکه "علم التوحید والصفات" په دیکښې د عقیدو سره متعلق حدیثونه ذکر کړی - لکه امام بیهقیؒ د کتاب "الاسماء والصفات" په نوم کتاب لیکلے دے، او په دیکښې ئے د عقیدو سره متعلق حدیثونه راوړی دی - او د غه علم الآداب او علم التفسیر او علم السنن او علم المناقب او علم السیر هم دی - لکه "جامع الصحیح للبخاری" او "جامع الترمذی" چه اته واړه فنون پکښې ذکر شوی دی - چا دا اته واړه فنون په شعر کښې جمع کړیدی ــ

سیر و آداب و تفسیر و عقائد     رقاق و اشراط و احکام و مناقب

(۲) **مسند** | د محدثینو په اصطلاح کښې هغه کتاب ته وائی، چه د صحابه کرامو په ترتیب سره پکښې احادیث جمع کړے شوی وی - که د حروف تهجی په اعتبار سره وی او که د صحابی د اول اسلام راوړلو په اعتبار سره وی، او یاد هر یو د نسبت د شرافت په اعتبار سره، لکه مسند احمد بن حنبلؒ او مسند ابی یعلیٰؒ او مسند دارمیؒ او مسانید ابی حنیفهؒ او مسند شافعی او مسند حمیدی -

(۳) **معجم** | د محدثینو په اصطلاح کښې هغه کتاب ته وائی، چه حدیث

ئے د شیوخو (استاذانو) په ترتیب سره ذکر کړي وي۔ که د هغوئ وفات کیدو په اعتبار سره وي او که د حروف تہجي په اعتبار سره۔ او یا د علم او تقوی په فضیلت کښې یو شان کیدو په اعتبار سره۔ خو اکثر د حروف تہجي په اعتبار سره وي۔ لکه د طبراني دریواړه معاجم (معجم کبیر، او معجم صغیر او معجم اوسط) او معجم اسماعیلي۔

(۴) **سنن** د محدثینو په اصطلاح کښې هغه کتاب ته وائي چه په فقهي ابوابو باندے مرتب وي یعني طهارت او مونځ او زکاة او روژه تر اخیره پورے ټول ابواب پکښې وي۔ لکه سنن نسائي، سنن ابي داود، سنن ابن ماجه او سنن بیهقي وغیره۔

(۵) **جزء** د محدثینو په اصطلاح کښې هغه کتاب ته وائي۔ چه په هغې کښې د یو کس یا د یو خاص موضوع سره متعلق احادیث جمع وي۔ لکه جزء حدیث أبي بکر او جزء حدیث مالك یا جزء قرآة الفاتحة خلف الإمام او جزء رفع الیدین او جزء الوتر۔

(۶) **رساله** په جامع کښې چه کوم اته فنون ذکر وي۔ لکه مخکښې ذکر شو که د دغه اته فنونو نه په یو فن باندے کتاب او لیکلے شي، هغې ته رساله وئیلے شي۔ په دے باره کښې د حافظ ابن حجرؒ او علامه سیوطیؒ ډیر ښه رسالے دي۔

(۷) **اربعین** (څلویښت حدیثونه) که د یو موضوع سره متعلق یا د

مختلفو موضوعاتو سره متعلق په یو سند سره یا په څو سندونو سره د څلویښت حدیثونه جمع کړي. نو هغه ته اربعین وائی، او جمع ئے اربعینات راځي. د امام نووي اربعین د ټولو نه زیات مشهور دی۔

**(۸) غرائب** د محدثینو په اصطلاح کښې هغه کتاب ته وائي، چه په هغې کښې دیو شیخ (استاذ) تفردات راجمع کړے شوي وي. یعنې دا تفردات ددے استاذ د نورو شاګردانو سره نه وي۔

**(۹) العلل** علل هغه کتابونو ته وائي، چه په هغې کښې د متن یا د حدیث د سند علت بیان شوے وي. لکه "کتاب العلل للإمام الترمذی" او "کتاب علل ابن أبی حاتم" او "کتاب علل یحی بن معین"

**(۱۰) اطراف** هغه کتاب ته وائي، چه محدث په هغې کښې د حدیث اولنی یا اخیرنی حصه ذکر کړي او باقي پریږدي. خو د حدیث سند مکمل ذکر کړي. لکه "تحفة الأشراف بمعرفة الاطراف" تالیف مزی"

**(۱۱) مستدرك** هغه کتاب ته وائي چه په هغې کښې حدیث په هغه سندونو سره ذکر وي، په کوم سره چه امام بخاری او امام مسلم حدیث نیولے وي. خو چنانچه دے دواړو امامانو د څه مصلحت په وجه سره دغه حدیثونه په خپلو کتابونو کښې نه وي ذکر کړي. لکه د حاکم مستدرك. خو دا خبره پیژندل ضروري دي. چه د مستدرك ټول حدیثونه د بخاری او مسلم په شرط باندے نه وي. ددے وجے نه د حاکم یو حدیث ته صحیح

ونیولو ته هغه څه اعتبار نشته ترڅو چه امام ذهبیؒ د هغې تصدیق او
موسته نه وی کړی۔

(۱۲) **مستخرج** د محدثینو په اصطلاح کښې هغه کتاب ته وائی، چه د
یو بل کتاب د حدیثونو د ثابتولو دپاره اولیکلې شی۔ او په ترتیب او
متنونو او اسناد په طرقو کښې هم د دغه بل کتاب خیال او ساتلې شی، خو
د دغه کتاب مصنف پکښې نوی ذکر شوے۔ بلکه د دغه مصنف شیخ یا د هغه
د شیخ شیخ ذکر شوے وی۔ لکه د ابو عوانه مستخرج په صحیح مسلم
باندے چه صحیح ابی عوانه ورته هم وائی۔ او د اسماعیلی مستخرج په صحیح
بخاری باندے چه صحیح اسماعیلی ورته هم وائی، او د ابو نعیم اصفهانی
مستخرج په صحیح بخاری او مسلم دواړو باندے۔

**تپوس:۔** د حدیثو په شرح کښې په کوم قسم شرح کولو کښې باندے
اعتماد او یقیــــین کول پکار دی؟

**جواب:۔** شاه عبد العزیز محدث دهلویؒ فرمائی۔ د اخبره پیژندل
ضروری دی۔ چه د حدیثو په شرحو او توجیهاتو کښې رنګارنګ اوله
هر قسمه رطب و یابس (لوانده او اوچ یعنی کمزوری او صحیح) هر څه
راغلی۔ او س د دا سے کسانو پیژندګلو ضروری ده چه په دے سلسله
کښې په هغوئ باندے اعتماد او یقین وی۔ او د هغوئ د کتابونو
نه فائده اغستنه کیدے شی۔

امام نوویؒ او محی السنه البغویؒ او ابو سلیمان الخطابی د دغو شافعی علماؤ نه زیات معتمد دی. او د دوی خبرے په دے باره کښ ډیرے کره او پخے دی. خصوصًا د بغویؒ "شرح السنة" په فقه حدیث او د حدیث د مشکلاتو په جوابونو کښ کافی شافی ده. لکه د "مصابیح" او "مشکاة" شرحه هم د دینه حاصلیږی. او د امام نوویؒ شرحه د صحیح مسلم او د خطابیؒ د ابوداود شرحه معالم السنن هم ډیره د کار شرحه ده. او امام طحاویؒ چه په تمامو حنفی عالمانو کښ د حدیث په شرحه کښ اول نمبر دے، او د هغه کتاب "معانی الآثار" د حنفیانو د ستاویز دے. او ابن عبد البرؒ په تمامو مالکی عالمانو کښ مخکښ دے، او د هغه کتاب "استذکار" او "تمهید" په دے سلسله کښ یادګار دے. که د دے خلقو کتابونه په لاس راشی. نو د متأخرینو عالمانو د تشویشونو او تکلفاتو نه به سرے بیغمه شی، (عجالہ نافعه ص۲۱)

## د صحیح والی او مشهورتیا په اعتبار سره د حدیثو د کتابونو قسمونه

تپوس:۔ د صحت او شهرت او قبولوالی په اعتبار سره د حدیثو کتابونه په څو قسمه دی؟

جواب:۔ د شاه ولی الله محدث دهلوی د وینا مطابق د حدیثو د کتابونو څلور طبقے (قسمونه) دی. هغه والی چه د حدیثو کتابونه

د صحت او شهرت او قبولوالي په اعتبار سره په څلور قسمه دی -

**تپوس:۔** د صحت او شهرت او قبولوالي د لته څه مطلب دے ؟

**جواب :۔** (۱) د صحت مطلب دا دے، چه مصنف د دے خبرے خيال ساتلے وی، چه صحيح يا حسن ذکر کړی - او که له دينه علاوه نور حديثو نه ذکر کړی نو پکار دی چه په هغه حديث کښ د ضعف او غرابت او علت او شذوذ بيان کړی - ځکه چه که ضعيف او غريب او معلول حديث راوړي خو چه ورسره ئے د هغے حال بيان کړے وی، نو خير دے -

(۲) د شهرت مطلب دا دے چه محدثين په هره زمانه کښ د هغے په روايت کولو او ضبط او مشکل حل کولو او تخريج کولو کښ مشغول وی د پاره د دے چه پټ پناه پکښ پاتے نه شي -

(۳) او د قبولوالي مطلب دا دے، چه د حديثو ناقدين (ذکره او کوټه جدا کولو والا) د دغه کتاب اثبات کوی، او اعتراض پرے نکوی - او د کتاب د مصنف حال د حديثو د حالاتو د بيانولو په وخت کښ بنائی - او فقهاء د دغه حديثو نه استدلال نيسی بغير د څه اختلاف او انکار نه -

**اوله طبقه** | په دے طبقه کښ د حديثو درے کتابونه دی -

(۱) موطا امام مالک (۲) صحيح بخاری (۳) صحيح مسلم، قاضی عياض مالکی "د مشارق الانوار" په نوم کتاب د دے درے واړو

کتابونو دپاره شرحه لیکلے دہ۔ او هم دا "مشارق الانوار" د دے درے واړو دشرحے دپاره کافی دے۔

## د دے درے واړو کتابونو دیو بل سره نسبت

د دے درے واړو کتابونو دیو بل سره نسبت دادے، چه موطا د صحیحینو دپاره بنیاد دے۔ سره د دے چه په صحیح بخاری او په صحیح مسلم کښی د موطا نه په څو څو چنده حدیث زیات دی۔ خو بیا هم د احادیثو د روایت طریقه او د راویانو تمییز او اعتبار او استنباط ئے د موطا نه ایزده کړے۔ او سره د دے چه د صحیحینو ډیرو خلقو او تمامو عالمانو خدمت کړے۔ خلاصه دا چه د دے درے واړو کتابونو احادیث د نورو حدیثونو نه زیات صحیح دی۔ سره د دے چه په د دے درے واړو کتابونو کښی بعضے حدیثو نه د بعضے حدیثونو نه زیات صحیح دی۔ نو دا درے واړه کتابونه په اوله طبقه کښی ایښودل کیږدی۔

**دویمه طبقه** هغه حدیثونه چه په د دے درے واړو صفتونو (صحت او شهرت او قبولوالی) کښی د صحیحینو حدیثو ته نه وی رسیدلی، خو په د دے صفتونو کښی صحیح ته نژدے وی۔ هغه د "جامع الترمذی" او "سنن ابی داود" او "سنن نسائی" حدیث دی۔ ځکه چه د دے کتابونو مصنفین په ثقه والی او حفظ او ضبط او د حدیث په فنونو کښی په مهارت مشهوردی۔ او په د دے خپلو کتابونو کښ ئے څه تسامح او تساهل

نه دے کړے، بلکه چه څومره کیدے شوه د هر حدیث حال او علت ئے ښکاره کړیدے، دے شپږو کتابونو ته "صحاح سته" وئیلے کیږی.

او ابن الاثیرؒ چه په "جامع الاصول" کښی دا شپږ واړه کتابونه راجمع کړی. او د غریب حدیث شرحه او د مشکلاتو او رجالو ضبط ئے کړے.

او د حدیث نورو متعلقات ئے هم ذکر کړی "سنن ابن ماجه" ئے په صحاح سته کښی نه دے شمارلے. او "مؤطا" ئے شپږم شمارلے نو دائے صحیح کار کړے، والحق معه'. شاه ولی اللهؒ "مسند احمد" او "سنن ابن ماجه" هم په دویمه طبقه کښی شمارلی دی.

**دریمه طبقه** | هغه حدیثونه چه د بخاری او مسلم د زمانے نه مخکښینی عالمانو یا د دوئ د زمانے عالمانو یا په دوئ پسے ورپسے عالمانو خپلو کتابونو کښی روایت کړی، او د صحت خیال ئے نه دے ساتلے. او دغه کتابونه په مشهورتیا او قبولوالی کښی اولے او دویمے طبقے ته نه وی رسیدلی، اګرکه د دغه کتابونو مصنفین په علم حدیث کښی تبحر (زیات مهارت والا) او ثقه کیدو او عدالت او په ضبط با ندے موصوف ؤو د دوئ په کتابونو کښی حدیث حسن او صحیح او ضعیف بلکه دا سے حدیثونه هم موندلے کیږی چه په هغے د وضع (دروغو) تهمت لګیدلے وی. او رجال (راویان) ئے بعضے په عدالت سره موصوف وی، بعضے مستور وی، او بعضے مجهول. او د دغه حدیثونو په ډیره

حصه د فقهاو عمل نه وی. بلکه د دے په خلاف اجماع شوے وی - په دغه کتابونو کښې په خپله هم فرق شته. بعضے د بعضے نه زیاتے قوی دی.

**دد رییمے طبقے کتابونه** دغه کتابونو نومونه دا دی. مسند امام شافعیؒ، سنن ابن ماجه، مسند دارمی، مسند ابی یعلی موصلیؒ، مصنف عبدالرزاقؒ، مصنف ابی بکر بن ابی شیبهؒ، مسند عبد بن حمید، مسند ابی داود طیالسی، سنن دارقطنی، صحیح ابن حبان، مستدرک حاکم، د بیهقیؒ کتابونه، د طحاوی کتابونه او د طبرانی تصانیف -

**څلورمه طبقه** هغه حدیثونه چه په تیرو شوو زمانو کښې د هغے نوم نشان هم نه وو - او متاخرینو (روستنو محدثینو) روایت کړی. دا حدیثونه د دوو حالو نه خالی نه وی - یا خو سلفو (تیرو شوو محدثینو) دا لټولی وو، خو د دے څه اصل په لاس نه وو ورغلے چه روایت ئے کړے یا ئے ورله څه اصل موندلے وو، خو څه علت او اعتراض ئے پکښې لیدلے وو - او په دے وجه ئے روایت نکړے شوه - په دواړو صورتونو کښې دا حدیثونه د دے جوګه نه دی، چه په دے سره یوه عقیده یا یو عمل ثابت کړے شی - دا سے قسم حدیث محدثینو په یرشے ذکر کړیدی - او د طرقو د زیاتوالی په وجه چه په دے قسم کتابونو کښې وو، دهوکه شو، او د تواتر حکم ئے پرے اولګولو، او د یقین او قطعیت دپاره ئے د دے حدیثونو نه دلیل اونیولو، او د اولے او دویمے او دریمے طبقے خلاف مذهب ئے جوړ

کړو، په دا ډول قسم حدیثونو کښې ډیر زیات کتابونه لیکلی شوی دی ـ دلته ترے څه کتابونه شمارم ـ

**دڅلورمې طبقې کتابونه** د دے طبقې څه کتابونه دا دی ـ

کتاب الضعفاء دابن حبان، دحاکم تصانیف، کتاب الکامل دابن عدی، دابن مردویه کتابونه، کتاب الضعفاء د عقیلی، دخطیب تصنیفونه، دابن شاهین تصنیفونه، دابن جریر تفسیر، د دیلمی فردوس، دابو نعیم تصانیف، دجوزقانی تصنیفونه، دابن عساکر تصنیفونه، دابو الشیخ او ابن نجار تصنیفونه،

## تساهل او وضعه (دروغ) په لاندینی موضوعاتو کښې زیاته واقع شوی دی

په مناقبو (دچا تعریف کول) او مثالبو (دچا عیبونه بیانول) او تفسیر او شان نزول او تاریخ او د بنی اسرائیلو حالات او د تیرو شوو پیغمبرانو په قصو او د کښ بلد په واقعاتو او د خوراک څښاک او د ځناورو په حالاتو کښې او په طب (علاج) او رقی (دمول) او عزائم (درخصت ضد) او د دعاګانو او د نفلونو په ثواب کښې دا قسم احادیث راغلی دی ـ ابن جوزی په خپل کتاب "موضوعات" کښې په دا قسم حدیثونو اکثر اعتراض کړیدے، او کمزوری ئے ثابت کړیدی ـ او د دے په دروغو کیدو ئے دلیلونه راوړی دی ـ او کتاب "تنزیه الشریعة" د دا سے قسم حدیثونو د رد دپاره پوره دے ـ او اکثر عجیبه عجیبه مسئلے لکه

د پیغمبر علیه السلام د مور او پلار صاحب د اسلام په باره کښې او د
عبد الله بن عباس رض نه د پښنو د مسې روایتونه او دغه شان نور
عجیبه عجیبه روایتونه په دے ځکښې ذکر شوی کتابونو کښې موندلے
کیږی - د علامه سیوطی رح د تصنیفونو او رسالو بنیاد هم په دغه کتابونو
دے - بیا هم که څوک د دغه کتابونو نه د استفاده (فائده اغستل)
شوق لری - نو پکار دی چه د امام ذهبی رح "میزان الاعتدال" او
د حافظ ابن حجر رح "لسان المیزان" نه د دے کتابونو د رجالو
(راویانو) حال معلوم ولو د پاره مخ نه وی - او د دے کتابونو د
غریب حدیث د شرحے او د مشکلاتو د توجیهاتو او جوابونو د پاره
ورله د شیخ محمد طاهر گجراتی رح کتاب مجمع البحار کافی دے -

(خلاصه عجاله نافعه از ص ۲ تا ۸ تالیف شاه عبد العزیز دهلوی رح)

## د حدیث د دروغ کیدو او د راوی د دروغژن کیدو نخے

**تپوس:-** شاه عبد العزیز محدث دهلوی رح یو ولس ذکر کړی دی
هغوئ وائی، پوهه شه چه د حدیث د دروغ کیدو او د راوی د
دروغژن کیدو علامتونه او نخے څو څیزونه دی ؟

**جواب:-** اول دغه چه د مشهور تاریخ نه خلاف اوکړی-
لکه داچه "عبد الله بن مسعود رض د صفین په جنګ کښې دا سے او وے،
او حال داچه دے حضرت عبد الله بن مسعود رض د حضرت عثمان رض د خلافت

په وخت کښې وفات شوے دے - داسے قسم دروغ او موضوعات په لږ شان غور وفکر سره معلومیږی -

دویم داچه راوی رافضی (شیعه) وی، او دصحابه کرامو په طعن (اعتراض کول) کښې حدیث روایت کړی - یا ناصبی (دحضرت علی رضـ مخالفین) وی، او د اهل بیتو په طعن کښې حدیث روایت کړی۔ وعلی هـذا القیاس یعنی هرمذهب والا دبل مذهب خلاف روایت اوکړی۔

دریم داچه داسے شے روایت کړی - چه په ټولو مصنفینو باندے دهغې پیش ندل او په هغې عمل کول فرض وی او بیا ئے هم صرف یو کس روایت کړی، نو دا دے حدیث په دروغ کیدو باندے پخه قرینه (دلیل) ده -

څلورم داچه وخت او قرینه ئے په دروغ کیدو باندے دلالت کوی۔ لکه دغیاث بن میمون په باره کښې راځی، چه یوځل دعباسی خلیفه مهدی مجلس ته لاړو، خلیفه دغه وخت دکوترو په الوزولو کښې مشغول وُو - غیاث دا روایت بیان کړو "لاسبق الا فی خف أو نعل أو حافر أو جناح" په اصل کښې د "جناح" لفظ نه وُو، غیاث دا لفظ دخلیفه دخوشحالو دپاره پکښې زیات کړو -

پنځم داچه دعقل او شریعت دتقاضو مخالف وی۔ او دشریعت قاعدے او اصول دهغې تکذیب کوی۔ یعنی دروغ ئے ګڼړی - لکه دقضاء عمری

حدیثو نه شو - یاد دے پښتان نور روایتو نه لکه "لاتأکلوا البطیخ حتی تذبحوها"

شپږم چه په حدیث کښې دغه داسے قیصے ذکر وی چه د لیدلو سره تعلق لری، او حسی او واقعی وی - او که چرے داقیصه رښتیا وے نو بیشماره خلقو به نقل کړے وے، لکه څوک داسے روایت اوکړی چه دجمعے ورځ وه خطیب په منبر ناست وُو - خلقو مخ کړو - او څرمن ئے تړے او ویسته - او حال دادے چه د دے روایت کولو کے صرف یو کس وی بل څوک ئے روایت نکوی -

اووم داچه د لفظ و معنی رکاکت (کمزورولے) ( د دے حدیث په دروغ کیدو دلالت کوی) لکه داسے روایت اوکړی - چه دعربیت (صرف او نحوے وغیره) د قاعدو مطابق نه سمیږی - یائے معنی داسے وی، چه هغه د نبوت د شان او عظمت مناسب نه وی -

اتم په وړوکی گناه باندے ډیر سخت وعید (دهمکی) یا په معمولی شان عمل باندے ډیره غټه وعده شوه، لکه "من صلی رکعتین فله سبعون الف دار و فی کل دار سبعون الف بیت و فی کل بیت سبعون الف سریر وعلی کل سریر سبعون الف جاریة" داسے قسم حدیثونه که د ثواب متعلق وی او که د عذاب، دروغ وی -

نهم داچه په معمولی عمل باندے د عمر اوچت ثواب پکښې ذکر وی.

(لکه د فضائلو په کتابونو کښې چه وي)

لسم داچه په څه کار باندے د پيغمبرانو ثواب پکښې ذکر وي (يعنې که چا دا کار اوکړو نو د پيغمبر هومره ثواب به ورته ميلاؤ شي- يا داچه د اوياوؤ پيغمبرانو ثواب به ورته ميلاؤ شي- يا پکښې د داسے مرتبے ذکر وي چه د پيغمبر د مرتبے نه زيات ياورسره برابر وي.

يوولسم داچه پخپله ئې به اقرار اوکړي چه ما له ځانه حديثونه جوړ کړيدي- لکه نوح بن أبي عصمة چه د قرآن مجيد د سورتونو په باره کښې ئے له ځانه حديثونه جوړ کړي وو، او ښه ئے مشهور اوخواره کړي وو- لکه څنګه چه د تفسير بيضاوي د هر سورت په اخير کښې ذکر دي- او کله چه د نوح بن أبي عصمة نه د دغه حديثونو د سند تپوس اوشو، نو اقرار ئے اوکړو، چه د دے حديثونو په جوړولو کښې م ښه اراده وه (يعنې ما په نيکه اراده جوړ کړيدي) او وجه ئے دا وه چه خلق په نورو علومو کښې اخته وو، او د قرآن نه غافله وو- ما د دوئ د ترغيب او قرآن کريم ته د راګرځولو د پاره دا حديثونه جوړ کړه- چه د قرآن مجيد علوم حاصل کړي- او په تلاوت کښې ئے مشغول شي، او حال دا دے چه دغه دا غدر د ګناه نه هم زيات بد دے- ځکه چه د قرآن مجيد په فضيلت کښې صحيح حديثونه موجود دي او د خلقو د ترغيب د پاره پوره دي- هم دغه شان د تماکو او قهوه

او د چلم په باره کښې ډیر حدیثونه دګانه جوړکړے شوی۔ او د
الفاظو او معنو رکاکت (کمزوري) ئے ظاهر دے۔

(خلاصۂ عجالۂ نافعه ص۲۹ تا ص۳۱)

# یوولسم باب

## د تخریج د مطلب او دهغے د کتابونو په بیان کښې

**تپوس:**۔ د تخریج لفظ د درس وتدریس په دوران کښې په مخه استعمالیږی، د دے څه مطلب دے؟

**جواب:**۔ (۱) تخریج په لغت کښې د دوو متضاد څیزونو په یو ځائے جمع کیدو ته وائی۔ لکه قاموس (د لغت کتاب دے) واله وائی۔ "عام فیه تخریج خصب وجذب" یعنی هغه کال چه په هغے کښې (دوه څیزونه) ارزانی او قحط سالی جمع شي۔ "وأرض مخرّجه نبتها فی مکان دون مکان" یعنی هغه زمکه چه د هغے په یو طرف واښه او ګیاه وی۔ او په بل طرف کښې ئے نه وی۔ "خرّج اللّوح تخریجا" "کتب بعضا و ترك بعضا" یعنی د تختئ په څه حصه ئے او لیکل۔ او څه نوره ئے پریښوده۔ "والخرج لونان من بیاض وسواد" او خرج تور او سپین دواړو رنګونو ته وائی۔ (القاموس ج۱/ ص۱۹۱، ۱۹۲)

(۲) تخریج د استنباط په معنی هم راغلے، لکه په قاموس کښې دی۔

"الاستخراج والاختراج الاستنباط" یعنی استخراج او اختراج داستنباط په معنی هم راځي. نو تفعیل هم په دے معنی راځي، او د تجربے او د مشق په معنی هم راځي، په قاموس کښې دی. "خرّجه فی الادب فتخرّج" یعنی هغه ته ئے د ادب مشق او کړو، نو هغه ادب ایزده کړو- او "خرّیج" و ټیلے کیږی د مفعول په معنی، او هغه چاته وائی چه علم او هنر ئے ایزده کړے وی- او دا ظاهره خبره ده چه علم او هنر بغیر د مشق نه نه حاصلیږی. (۳) د توجیه (د مسئلے وجه او علت بیانول) په معنی هم راځي- لکه و ټیلے کیږی "خرج المسئلة ای بیّن لها وجها" او د فقهاؤ یو ډلے ته اصحاب التخریج و ټیلے کیږی- هم په دے وجه مجتهدینو کومے مسئلے غیر مدلل (د دیل د ذکر کولو بغیر) بیان کړی وی- دوئی د هغے وجه او علتونه یعنی د هغے نقلی او عقلی دیلونه بیانوی- او مخرج وتو او ښکاره کیدو ته وائی، لکه و ټیلے کیږی "هذا مخرجه" او د محد ثینو د دے قول "هذا حدیث عرف مخرجه" ای موضع خروجه" هم دا مطلب دلے- او د "حدیث عرف مخرجه" مطلب د حدیث سند او راویان دی- چه د دوئی په طریق سره د غه حدیث ښکاره شوے دے، لکه و ټیلے کیږی " أخرجه البخاری" هم په دے معنی کښې استعمالیږی- یعنی امام بخاری د دے حدیث مخرج ظاهر کړو، د حدیث د سند په ذکر کولو سره- نو معلومه شوه چه مخرج د حدیث راویان او رجال دی، چه د حدیث سند ورته هم و ټیلے کیږی- د کلام خلاصه دا شوه،

چه" اخراج او تخریج " د محدثینو په نیزد په یو معنی استعمالیږی، یعنی مخرج ذکر کول یعنی د حدیث راویان -

دحدیثو عالمانو تخریج په دریو معنو کښی استعمال کړیدے -

(۱) دکتاب په ذریعه خلقو ته حدیث ښکاره کول، ابن الصلاحؒ په خپل کتاب " علوم حدیث " کښی وائی " وللعلماء بالحدیث فی تصنیفه طریقتان احداها التصنیف علی الابواب وهو تخریجه علی احکام الفقه وغیرها " ص۲۲۵

دابن الصلاحؒ په دے قول کښی د" تخریج " نه دخلقو دپاره دفقهی احکام یا که نور څه احکام یکښی وی د هغے په لحاظ سره روایت کول مراد دی -

(۲) دکتاب احادیث راویستل او هغه کتاب ته ئے نسبت کول لکه علامه سخاویؒ په خپل کتاب " فتح المغیث " کښی وائی " والتخریج اخراج المحدث الأحادیث من بطون الاجزاء والمشیخات والکتب ونحوها وعزوها إلی من رواها من اصحاب الکتب والدواوین (۲/ ۳۳۸)

(۳) دحدیث اصل مرجع او دکوم کتاب نه چه دا حدیث اغستے شوے هغے ته نسبت کول لکه علامه مناویؒ په خپل کتاب " فیض القدیر " کښی دعلامه سیوطیؒ د دے قول " و بالغت فی تحریر التخریج " لاندے لیکی " بمعنی اجتهدت فی تهذیب عزو الأحادیث إلی مخرجیها من أئمة الحدیث من الجوامع والسنن والمسانید فلا اعزو إلی شیئ منها الا بعد التفتیش عن حاله وحال مخرجیه ولا اکتفی بعزوه إلی من لیس من اهله " یعنی ما

داکوشش کړېږي چه حدیثونه دحدیث هغه عالمانو ته نسبت کړم، چا چه داحدیثونه جمع کړېدي - خواه دامصنفین د جوامعو مصنفین وي اوکه د سننو او مسانیدو - او نسبت هله کوُوم کله چه ددغه مصنف او د حدیث دراوي په باره کښې لټون اوکړم - او کوم خلق چه ددے فن (حدیث) ماهرنه دي ، هغوئ ته نسبت نه کوُوم -

**د تخریج اصطلاحي مطلب** | نن صبا چه د تخریج کوم اصطلاحي مفهوم په باره کښې بحث کیږي - هغه دا دے ، چه حدیث په سند سره نقل کول . بیائے دا ښودل چه داحدیث په کوم کتاب کښې دے - اوکه ضرورت وي نو دحدیث مرتبه (چه ضعیف دے اوکه قوي) بیانول - دحدیث دماخذ نه مراد هغه کتابونه دي چه حدیث په هغے کښې موندہ شي. لکه وائي " أخرجه البخاري في صحيحه " يا " أخرجه الطبراني في معجمه " يا " اخرجه مالك في "موطاه" دحدیثو په باره کښې د رهنمائیے دپاره کوم کتابونه چه لیکلي شوي - دا صرف دحدیثو دجمع کولو دپاره لیکلي شوي ، دنورو علمونو دپاره نه دي - او هسے طور یکښې حدیث ذکر شوي وي - دا دغه کتابونه اصلي ماخذ نه دي -

( اصول التخريج ودراسة الأسانيد صـ۹ تا صـ۱۲ تالیف دکتور محمود طحان )

## داحادیثو د تخریج دپاره لیکلي شوي مشهور کتابونه

تپوس :- دحدیثو د تخریج دپاره چه کوم کتابونه لیکلي شوي - کوم کوم دي ؟

جواب :- دحدیثو عالمانو دحدیث د تخریج په حقله ګڼ کتابونه لیکلي

دی، په هغې کښې چه کوم مشهور دی، هغه دلته ذکر کوؤم۔

(۱) تخریج احادیث "المهذب" (چه د ابو اسحاق شیرازی کتاب دے) محمد موسیٰ الحازمی ۵۸۴ھ لیکلے۔

(۲) تخریج احادیث "المختصر الکبیر" (از ابن حاجب) تالیف محمد بن احمد بن عبد الهادی المقدسی (۷۴۴ھ)

(۳) نصب الرایه فی تخریج احادیث الهدایه (از شیخ مرغینانی) تالیف عبدالله بن یوسف الزیلعی (۷۶۲ھ)

(۴) تخریج احادیث الکشاف (از زمخشری) تالیف حافظ زیلعیؒ۔

(۵) البدر المنیر فی تخریج الأحادیث والآثار الواقعة فی الشرح الکبیر (از رافعی) تالیف عمر بن علی الملقن (۸۰۴ھ)

(۶) المغنی عن حمل الأسفار فی الاسفار فی تخریج مافی الاحیاء من الاثار، تالیف عبدالرحیم بن الحسین العراقی (۸۰۶ھ)

(۷) تخریج الاحادیث التی یشیر الیها الترمذی فی کل باب "وفی الباب" تالیف حافظ عراقیؒ۔

(۸) کشف النقاب عما یقول الترمذی وفی الباب، تالیف مولانا الدکتور حبیب الله مختار مدظله۔

(۹) التلخیص الحبیر فی تخریج احادیث شرح الوجیز الکبیر (للرافعی) تالیف أحمد بن علی بن حجر العسقلانی (۸۵۲ھ)

(۱۰) الدرایة فی تخریج احادیث الهدایه، تالیف ابن حجرؒ ۔

په دے خبره ځان پوهه کول پکار دی چه "درایه" د حافظ ابن حجرؒ څه مستقل تالیف او تصنیف نه دے، بلکه داد زیلعیؒ "د نصب الرایه" خلاصه ده ۔ دوهره فرق لری ۔ چه زیلعیؒ کوم حدیثونه د حنفی مذهب او دهدائے د مصنف په تائید کښی ذکر کړی، حافظ ابن حجرؒ هغه صفا حذف کړی او پریښی ئے دی ۔ او د شافعی مذهب د تائید دپاره ئے احادیث او آثار راوړی دی ۔ امام زیلعی چه د "احادیث الخصوم" په عنوان سره یعنی د جانب مقابل حدیث ذکر کړی وُو، حافظ صاحب هم هغه اصل کړځولی دی ۔ فسامح الله عنه ۔

(۱۱) تحفة الراوی فی تخریج احادیث البیضاوی ۔ تالیف عبدالروف ابن علی المناوی (۱۰۳۱ھ)

(اصول التخریج والدراسة ص۱۸ تا ص۱۹)

# دولسم باب

## د راویانو د طبقو د مرتبو په باره کښی

تپوس :۔ حافظ ابن حجرؒ په "تقریب التهذیب" کښی د راویانو دپاره د ضعف او قوت په اعتبار سره مرتبے ذکر کړیدی، هغه کومے کومے دی ؟

جواب :۔ حافظ صاحب په د غه کتاب کښی د راویانو دولس مرتبے

ذکر کړیدی ، او هغه دادی ۔

(۱) **اوله مرتبه** د صحابه کرامو ده ، د اسماء الرجال په کتابونو کښې د برکت د پاره ذکر شویدی ۔ او د هغوئ د صحابیت تصریح شویده (په دوئ د جرح څه اعتبار نشته ، ځکه چه "الصحابة کلهم عدول" اتفاقي خبره ده (مترجم غفرله)

(۲) **دوېمه مرتبه** دا هغه راویان دی چه د اسم تفضیل یعنی د "افعل" په صیغه سره د دوئ مدحه او تعریف شوے وی ۔ لکه "اوثق الناس" او یائے په الفاظو کښې صفت مکرر (څو ځله) ذکر شوے وی ، لکه "ثقة ثقة" او یائے صفت د معنی په اعتبار سره مکرر ذکر شوے وی ، لکه "ثقة حافظ"

(۳) **دریمه مرتبه** هغه راویان دی چه په تعریف کښې ئے یو صفت ذکر شوے وی ۔ لکه "ثقة" یا "متقن" یا "ثبت" یا "عدل"

(۴) **څلورمه مرتبه** هغه راویان چه د دریمے مرتبے د راویانو نه ئے مرتبه کمه وی او په "صدوق" یا "لا بأس به" یا "ليس به بأس" سره ورته اشاره شوې وی ۔

(۵) **پنځمه مرتبه** هغه راویان چه د څلورمے مرتبے د راویانو نه ئے مرتبه کمه وی ، او په "صدوق سيئ الحفظ" یا "صدوق يهم" یا "له اوهام" یا "يخطئ" یا "تغير بآخره" ورته اشاره شوې وی ۔ او د دوئ سره هغه راویان هم ملحق دی ۔ په چا چه د څه بدعت تهمت لګیدلے وی ۔ لکه شیعه کیدل یا قدری کیدل ، یا ناصبی کیدل ، یا مرجیئه او یا جهمی کیدل ۔

(۶) شپږمه مرتبه | هغه راویان دي چه له هغوئ نه ډیر کم روایات شوي وي۔ خو داسې څه خبره ښکاره نه وي چه د هغې په وجه سره ئې حدیث پرېښودې شي۔ او س که متابع ئې موجود وي، نو په "مقبول" سره او که متابع ئې نه وي نو په "لین الحدیث" سره ورته اشاره کیږي۔

(۷) اوومه مرتبه | هغه راویان چه روایت خو ترې ډیرو خلقو کړے وي۔ خو توثیق ئې نه وي شوے (یعنې چا ورته ثقه نوي ویلي) دوئ ته د "مستور" او "مجهول الحال" په لفظ اشاره کیږي۔

(۸) اتمه مرتبه | هغه راویان چه د چا معتبر سړي نه ئې توثیق نه وي ذکر شوے۔ (چا معتبر محدث ورته ثقه نوي ویلي) خو د ضعیف اطلاق پرے شوے وي (یعنې چا ورته ضعیف و یلي وي) اګر که د ضعیف کیدو وجه ئې مبهمه (پټه) وي۔ دوئ ته د ضعیف په لفظ سره اشاره کیږي۔

(۹) نهمه مرتبه | هغه راویان چه دیو کس نه زیات ترے نه چا روایات کړے وي او نه ئې چا توثیق کړے وي۔ دوئ ته د "مجهول" په لفظ سره اشاره کیږي۔

(۱۰) لسمه مرتبه | هغه راویان چه چا ئې توثیق هم نوي کړے۔ او د څه عیب په وجه سره ورته ضعیف ویلي شوے وي۔ دوئ ته د "متروك" یا "متروك الحدیث" یا "واهي الحدیث" یا "ساقط" په لفظ سره اشاره کیږي۔

(۱۱) یوولسمه مرتبه | هغه راویان چه په هغوئ د دروغو وئیلو تهمت پیښه لګیدلے وی۔

(۱۲) دولسمه مرتبه | هغه راویان چه د هغوئ په باره کښی د "کذب" او "وضع" لفظ استعمال شوے وی۔ یعنی په دروغو وئیلو او لګولو د حدیث په جوړولو مشهور وی۔

فائده :- د راویانو د مرتبو د بیان په ضمن کښی د تعدیل او جرحے الفاظ هم معلوم شول، لکه "ثقة ثقة" د "ثقة" نه زیات قوی دے۔ او "ثقة حافظ" د "ثقة" سره په مرتبه کښی برابر دے۔ او د "صدوق" او "لا بأس به" او یا "لیس به بأس" د ثقة د مرتبے نه کم دے۔ او دا هم معلومه شوه، چه "کذب" او "وضع" الفاظ د "متهم بالکذب" نه زیات سخت دی۔ او د "واهی الحدیث" لفظ د "مجهول" د لفظ نه زیات سخت دے۔ او د "ضعیف" لفظ د "مستور" او "مجهول الحال" د لفظ نه زیات سخت دے۔ (تقریب التهذیب طبع مجتبائی ص۲ تا ۳)

تپوس :- د راویانو طبقات څو دی؟

جواب :- طبقات په دولس قسمه دی، او تفصیل ئے دا دے۔

(۱) اوله طبقه | د صحابه کرامو طبقه ده۔ سره د دے چه د دوئ په مرتبو کښی دیر بل نه فرق دے۔

(۲) دوهمه طبقه | کبار تابعین لکه سعید بن المسیب وغیره۔

(۳) دریمه طبقه | د تابعینو منځنۍ طبقه لکه ابن سیرین" او حسن بصري" وغیره -

(۴) څلورمه طبقه | داد دریمې طبقې سره میلاؤ دي - اکثر روایات ئې د کبارو تابعینو نه وي - لکه زهري" او قتاده" وغیره -

(۵) پنځمه طبقه | صغار تابعین چه یو یادوه صحابه ئې لیدلي وي - او د بعضو یکښې د صحابه کرامو نه سماع ثابته نه وي - لکه اعمش" وغیره -

(۶) شپږمه طبقه | د پنځمې طبقې سره معاصر وي (زمانه ئې یوه وي) خو ملاقات ئې یو صحابي سره هم ثابت نه وي - لکه ابن جریج" وغیره -

(۷) اوومه طبقه | کبار اتباع تابعین لکه امام مالک" او سفیان ثوري" وغیره

(۸) اتمه طبقه | د تبع تابعینو منځنۍ طبقه، لکه ابن عیینه" او ابن علیه" وغیره -

(۹) نهمه طبقه | صغار تبع تابعین لکه یزید بن هارون" او امام شافعي" او ابوداؤد طیالسي" او عبدالرزاق" وغیره -

(۱۰) لسمه طبقه | د تبع تابعینو نه د روایت کوونکو لویه طبقه چه د تابعینو سره ئې ملاقات نوي شوے - لکه امام احمد بن حنبل" وغیره -

(۱۱) یوولسمه طبقه | د تبع تابعینو نه د روایت کوونکو منځنۍ طبقه، لکه محمد بن یحی ذهلي" او امام بخاري" وغیره -

(۱۲) دولسمه مرتبه | دتبع تابعینو نه روایت کوونکو ورو کے طبقه، لکه امام ترمذی وغیره - (تقریب التهذیب بزیادة لیسیرة ص۳)

**تپوس :-** دمرتبو او طبقاتو په مینځکښې فرق څه دے ؟

**جواب :-** مرتبے دجرحے او تعدیل او د ضعف او قوت په اعتبار سره وی، او طبقے دخیر القرون په اعتبار سره وی، چه کوم راوی د صحابه کرامو سره متعلق دے - او کوم یو د تابعینو سره، او کوم یو د تبع تابعینو سره - که دوړے طبقے نه وی او که د مینځوئے نه او که دلوئے نه - او یائے دتبع تابعینو دشاګردانو سره تعلق دے -

# خاتمه

## د محدث او د حدیث شریف د طالب د آدابو په بیان کښې

**دمحدث آداب |** مستحب دا دی - چه د محدث عمر ترڅلویښتو کالو رسیدلے وی - ځکه چه په دے عمر کښې بدنی او روحانی ټول قوتونه جمع شوی وی - او عقل پوخ شوے وی - پیغمبر علیه السلام هم چه دڅلویښتو کالو شو نو نبوت ورته میلاؤ شو - خو ابن الصلاح په "علوم الحدیث ص۲۰۶" کښې وائی، چه د څلویښتو کالو د عمر شرط دعقے چاد پاره دے، چه د حدیث په علم کښې ئے سنه تجربه نوی - او صحیح خبره دا ده، چه هر کله د حدیث د بیانولو قوت پکښې پیدا شی - او د

خلقو ورته حاجت وي، نو که څوان وي بیا هم ورله پکار دي، چه بیان کړي۔ لکوره امام مالک څوان وُو، او د حدیثو بیانول ئې شروع کړي وُو۔ امام شافعي هم په ځوانئ کښې د شرعي علومو خورول شروع کړي وُو۔ محدث لره د ټولو نه مخکښې کوم شے چه لازم او ضروري دے۔ هغه اخلاص صفائیت او تقویٰ ده۔

(۲) کله چه دومره بوډاوالی ته اورسي، چه حافظه ئې کار نه ورکوي۔ او د حدیث د متنونو اختلاط (ګډوډیدل) او د سندونو د ګډوډ کیدلو خطره پیدا شي۔ نو پکار دي چه د تدریس نه لاس اوچت کړي او د اخیره هم د صحت او د مزاج او طبعیت سره تعلق لري۔ ځکه چه ډیر خلق داسے وي چه تر سلو کالو اورسي، او بیائې هم ټول قوتونه په ځائے وي۔ او زائل شوي نوي۔

(۳) داهم مستحب دی، چه کله څوک ترے د عمر یا د علم په لحاظ سره اوچت وي، او یا ورسره یو شان وي، د هغه په مخکښې د حدیثو نه بیانوي۔

(۴) د هغه شان په داسے ښار کښې چه په هغے کښې دده نه غټ محدث وي، او خلقو ته حدیث بیانوي، هلته دِ هم حدیث نه بیانوي۔

(۵) که چرے دده نه غټ محدث ناست وي، او له ده نه د حدیث پښتنه اوشي، نو پکار دي۔ چه د هغه مشر او لوئي محدث ته اشاره اوکړي، چه له هغوئ نه ئے اوتپوسئ۔

(۶) څوک د بې اخلاصۍ په وجه سره د حدیثو نه محرومه کول نه دي پکار، (ګمان) کیدیشي چه الله تعالیٰ د هغه نیت سم کړي۔

(۷) پکار دي، چه خلقو ته د حدیث په رسولو او تعلیم ورکولو کښې حرصناک وي۔

(۸) پکار دي، چه د حدیث د بیانولو د پاره د امام مالکؒ طریقه اختیار کړي، هغه چه به د حدیثو بیانولو ته کیناستو، نو اول به ئې اودس اوکړو، بیا به د درس په ځائې کیناستو بزیره به ئې ګومنځ کړه، خوشبوئي به ئې اولګوله او په وقار او هیبت سره به داسې کیناستو، لکه چه پیغمبر علیه السلام پخپله په مجلس کښې موجود وي، په ولاړې به ئې حدیث نه بیانول، او چلتې به ئې هم نه کول، او که چا به د حدیث په مجلس کښې آواز زیات او چت کړو نو هغه به ئې منع کولو۔

(۹) پکار دي چه هر طرف شاګردانو او اوریدونکو ته مخ کړي۔ او (لکه څو بن د زمانې د طالبانو په شان) حدیث دِ زر زر نه وائي۔ بلکه رو رو دِ ئې لولي، د پاره د دې چه هر څوک د حدیثو په الفاظو پوهه شي، او معنی ئې معلومه کړي۔

(۱۰) داهم مستحب دي، چه د حدیثو د درس شروع دِ د داسې لوستونکي په لوستو سره اوکړي، چه آواز ئې خوږ وي او کله چه لوستونکې عبارت پوره کړي، نو محدث دِ اول بسم الله اووائي، بیا دِ د الله تعالیٰ

حمد او ثنا اووائي، او بيا دِ په پيغمبر عليه السلام او نورو پيغمبرانو درود شريف اووائي

(۱۱) دا هم مستحب دی، چه کله خپل استاذ ذکر کړی نو پکار دی، چه دهغه تعریف اوکړی۔ د سلفو هم دا طریقه وه، (څوک پښتانه نه چه لس منټه د سبق نه مخکښ او لس منټه د سبق نه روستو دا استاذ غیبت اوکړی)

(۱۲) ټولو طالبانو ته د آواز د رسولو دپاره پکار دی، چه په یو داسې او اوچت ځائے کښ کرسئ باندے کینی۔ او که داسے نشی کیدے، نو په ولاړے دِ حدیث بیان کړی (او یا دِ لاؤډ اسپیکر استعمال کړی)

# د حدیث د طالب علم آداب

(۱) طالب علم له پکار دی، چه د هر څه نه مخکښ په عاجزئ سره الله تعالیٰ ته مخ کړی۔ او د سبق دپاره د توفیق او اسانتیا سوال اوکړی، پکار دی چه ښه خائسته اخلاق ئے وی۔ او د عمر مقدار هم دومره پورے دے چه یاد ولے ئے شی۔

(۲) پکار دی، چه د فرصت وخت غنیمت اوګنړی، د ټولو نه اول دِ ته د حدیث علم زده کړی۔ (دا سے نه لکه څوک د زمانے د خلقو پښتانه چه په غوبړونو کونټی شی او په ستړکو ړوندشی او یو ځل چرته او هغه هم په شلی

دېرش صفحو باندے په پنځلس منټه کښې تېر شي)۔

(۳) پکار دی چه دخپل ښار د هغه عالم نه چه سند ئے عالی وی او په پرهېزګارئ او تقوئ کښې دټولو نه زيات وی۔ اوّل دِ د هغه نه حديث واورِی۔ او کله چه دخپل ښار د محدثينو نه اوزګار شي۔ نو دحديث د اوريدلو د پاره دِ بل ځائے ته سفر اوکړی اولاړ دِ شي۔ د حديث د امامانو هم دا طريقه ده۔

(۴) د سفر تکليفونه او عيش وعشرت دِ د حديث په حاصلولو کښې رکاوټ نه ګرځوی۔

(۵) دهر قسمه حديث چه واورِی، او ياد ئے کړی۔ که د عمل سره تعلق لری نو عمل دِ پرے اوکړی۔ ځکه چه دا عمل دعلم زکاة دے۔

(۶) پکار دی چه دکوم استاذ نه حديث اوری، د هغه تعظيم او احترام دِ کوی، ځکه چه دا د علم احترام او عزت دے۔ داستاذ سره دِ خبرے نه اوږدوی۔ ځکه چه هغه په دے باندے خفه کيږی۔ پير ځله داسے اوشي چه داستاذ خفګان دعلم نه دمحرومېدو سبب جوړ شي۔

(۷) پکار دی چه دخپلو کارونو په باره کښې د استاذ نه مشوره واخلی۔ او که فائده ورته اورسی، نو نورو ته دِ هم دغه مشوره ورکړی۔

(۸) دا خيال دِ نکوی، چه دا خو ځما نه دعمر په لحاظ سره يا دمرتبے او يا دنسب په لحاظ سره لاندے دے، او داسے دحيا او تکبر په وجه

سره د دغه استاد نه د حدیث اوریدل پس ین دی، د ادِ نکوی۔ پکار دی، چه د استاذ سختی او غصه برداشت کړی۔

(۹) پکار دی چه په کومو احادیثو د اسلام بنیاد دے، او ضروری ادی، هغه دِ اوّل واوُری، او د غیر ضروری راویانو د کثرت په وجه دِ هسے وخت نه ضائع کوی۔

(۱۰) هر جز یا کتاب چه اوُری، پکار دی، چه پوره ئے واوُری۔ بغیر د خه ضرورت نه څه اوریدل او څه پریښودل نه دی پکار (لکه موږه چه د موطا او سنن نسائی او ابن ماجه نه صرف څکه کوُو)

(۱۱) د حدیث صرف اوریدل کافی نه دی، بلکه د خپلو اوریدلو شوو حدیثونو ضعف او صحت او معنی او فقه دِ سنه او پیژنی، او ځان دِ پرے پوهه کړی۔ ترڅو دے چه اعراب او لغت او د دغه حدیثونو اسماء الرجال نه دِ هم ځان سنه واقف کړی۔

(۱۲) د علم د حاصلولو په دوران کښ دِ په دے طریقه عمل اوکړی۔

① اول دِ صحیح بخاری او صحیح مسلم واوُری۔

② بیا دِ سنن ابی داوُد، سنن ترمذی، سنن نسائی او سنن ابن ماجه۔

③ بیا دِ سنن کبری للبیهقی او شرح معانی الآثار للطحاوی۔

④ بیا دِ مسانید، لکه مسند احمد بن حنبلؒ وغیره۔

⑤ پکار دی چه د تاریخ د پاره التاریخ الکبیر للبخاری، او تاریخ

ابی خیثمه په مطالعه کښې او ساتئ -

⑥ او د "جرح او تعدیل" د پاره "کتاب الجرح والتعدیل" لابن أبی حاتم گورئ -

⑦ او د مشکل نومونو د پیژندلو د پاره د دا ابن ماکولا کتاب دځان سره ساتئ -

⑧ د غریب الحدیث د حل د پاره د محدث گجراتی "مجمع البحار" او د ابن أثیر "نهایة" کافی ده -

⑨ حدیث د دخپل وس مطابق کم کم وائی - چه په مطلب رسیدل ئے آسان وی.

( ملخص از "الخلاصه فی اصول الحدیث" تالیف حسین بن عبدالله الطیبی از صنـ۱۲۰ تا صـ۱۴۳ )

الحمد لله چه نن ذکل په ورځ د مازیګر په شلورمه د جمادی الثانی په دوهم تاریخ سنه ۱۴۱۵ھ او د نومبر په اووم تاریخ سنه ۱۹۹۴ء د دې کتاب د ترجمې نه فارغ شوم - فله الحمد اولاً وآخراً وظاهراً وباطناً وصلى على خير خلقه محمد وآله وصحبه أجمعين وعلى من تبعهم بإحسان إلى يوم الدين آمين يا رب العالمين -

وكتبه
ابو یوسف محمد ولی درویش غفر له
الأستاذ بجامعة العلوم الاسلامية
علامه بنوری ټاؤن کراتشی ۵

۲ - ۶ - سنه ۱۴۱۵ھ
۷ - ۱۱ - سنه ۱۹۹۴ء

او د نظر ثانئ نه د اتوار په ورځ د شوال په اوولسم تاریخ سنه ۱۴۱۵ھ بمطابق ۱۹ مارچ سنه ۱۹۹۵ء او زګار شوم - فله الحمد اولاً وآخراً وظاهراً وباطناً وصلى الله تعالى على سيد الأنبياء والمرسلين وآله وصحبه أجمعين وعلى من تبعهم بإحسان إلى يوم الدين -

وكتبه
ابو یوسف محمد ولی درویش غفر له

۱۷ / ۱۰ / ۱۴۱۵ھ
۱۹ / ۳ / ۱۹۹۵ء

# فہرس مراجع


| نام کتاب | مصنف |
| --- | --- |
| ① مقدمہ شرح سفر السعادۃ | شیخ عبد الحق محدث دہلویؒ |
| ② عجالۂ نافعہ | شاہ عبد العزیز محدث دہلویؒ |
| ③ بستان المحدثین | " " " |
| ④ الخلاصۃ فی اصول الحدیث | علامہ طیبیؒ شارح مشکاۃ |
| ⑤ شرح نخبۃ الفکر | علامہ ابن حجر عسقلانیؒ |
| ⑥ تقریب التہذیب | " " " |
| ⑦ شرح شرح النخبۃ | ملا علی قاری الہرویؒ |
| ⑧ تیسیر المصطلح | دکتور محمود الطحان |
| ⑨ اصول التخریج والدراسۃ | " " " |
| ⑩ قواعد فی علوم الحدیث | علامہ ظفر احمد عثمانیؒ |
| ⑪ مقدمہ فتح الملہم | علامہ شبیر احمد عثمانیؒ |
| ⑫ من اطیب المنح فی علم المصطلح | عبد الکریم مراد وعبد المحسن العباد |
| ⑬ تدریب الراوی | امام جلال الدین سیوطیؒ |
| ⑭ معارف السنن | المحدث البنوریؒ |
| ⑮ المنظومۃ البیقونیۃ | عمر بن محمد بن فتوح الدمشقیؒ |
| ⑯ علوم الحدیث | علامہ ابن الصلاحؒ |

# آسان اُصولِ حدیث

''السعی الحثیث'' اصولِ حدیث کے موضوع پر حضرت مولانا محمد انور بدخشانی صاحب زید مجدہم کی مختصر و جامع فارسی تالیف ہے، جس کی افادیت کے پیشِ نظر مولانا مفتی محمد ولی درویش رحمہ اللہ نے پشتو زبان میں ''الجہد الاثیث'' کے نام سے اس کا ترجمہ فرمایا تھا، جسے اردو قالب میں ڈھالنے کی ایک کوشش کی گئی ہے۔


اردو ترجمہ

**محمد عمران ولی**

جامعۃ العلوم الاسلامیۃ
علامہ بنوری ٹاؤن کراچی



اسلامی کتب خانہ
علامہ بنوری ٹاؤن کراچی 021-4927159